# د موضوعاتو فهرست

# د عقایدو برخه

## د اعمالو تلل (وزن کول)

انسان په نړۍ کې بې هدفه نه دی پیدا شوی ، بلکې د ده کړه وړه ټول لیکل کېږي، دقیامت په ورځ به حساب ورسره کېږي، نیکي او بدي به یې تلل کېږي. د چا چې د نیکۍ تله درنده شوه، کامیاب دی او د چا چې د نیکۍ تله سپکه شوه، ناکام دی.

د اعمالو وزن څه ته وايي؟ دلیل یې څه دی؟ څنګه به ترسره کېږي؟ په دې لوست کې به د دې پوښتنو ځواب بیان شي.

**د اعمالو د وزن څرنګوالی**

د قیامت په ورځ، وروسته له دې چې انسانان ژوندي کړای شي، د حضرت محمدﷺ په شفاعت به د الله تعالی غضب سوړ شي. عملنامې به نیکانو ته په ښي لاس او بدانو ته د شا له خوا په کیڼ لاس ورکړل شي. حساب به پیل شي خلک به په خپلو اعمالو اعتراف وکړي او د مؤمنانو د اعمالو تلل به پیل شي. د چا چې د نیکۍ تله درنه شوه، هغه به جنت ته ځي او د چا چې د بدۍ تله درنه شوه، هغه به د الله تعالی مشیئت ته سپارل کېږي، که خوښه یې شي، نو جنت ته به یې ولېږي او که خوښه یې شي د څه وخت لپاره به یې په دوزخ کې واچوي. د عمل د جزا له لیدلو وروسته به یې جنت ته داخل کړي.

**د اعمالو د حساب او تللو د اثبات دلایل:**

د اعمالو تلل په قرآن کریم او سنتو ثابت دي.

د عملنامو او د حساب په هکله الله تعالی فرمايي: ﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ ۞فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا ۞وَيَنْقَلِبُ إِلَى اهلهِ مَسْرُورًا ۞ وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ وَرَاءَ ظَهْرِهِ ۞ فَسَوْفَ يَدْعُو ثُبُورًا۞ وَيَصْلَى سَعِيرًا﴾ [الإنشقاق: ۷ - ۱۲]

**ژباړه:** نو هغه څوک چې عملنامه یې په ښي لاس ورکړل شي، په اسانه توګه به حساب ورسره وشي او کورنۍ ته به خوښ ور وګرځي او هغه څوک چې عملنامه یې دشا له لوري ورکړل شي ، هلاکت به ځان ته وغواړي او اور ته به ور دننه شي.

په یو بل آیت کې الله تعالی د اعمالو د وزن په هکله فرمايي: ﴿وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ [الأعراف: ۸] **ژباړه:** او په هغه ورځ به ریښتینې تلل وي، د چا، چې د (نیکی) پله درنه وي، هغوی به خلاصون ومومي.

له کافر سره د ده د اعمالو محاسبه شته، خو تلل یې نشته، ځکه چې د بلې پلې لپاره نیکي نه لري. الله تعالی په دې اړه فرمايي:﴿أُولَئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾ [الكهف: ۱۰۵] **ژباړه:** دا هغه کسان دي چې د خپل څښتن د آیتونو له منلو نه يې انکار کړی نو د دوی عملونه ضائع شول او د قیامت په ورځ به تله نه ورته بردو.

**له عملنامې څخه د بدیو د محوې لارې چارې**

که له یو چا څخه بد عمل صادر شي، نو په عملنامه کې یې لیکل کېږي. آیا له توبې پرته چې د بدیو د محو کېدو اصلي چاره ده، داسې څه نورې چارې شته چې دا بدي له عملنامې څخه محوه کړي؟

هو: نیکي بدي له منځه وړي. الله ﷻ فرمايي: ﴿إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ﴾ **(هود ۱۱۴)**

**ژباړه:** بې شکه نیکي بدي له منځه وړي. ځینې هغه نیکي چې د بدیو په محوه کولو کې مرسته کوي دا دي:

**۱ـ له بدو څخه وروسته نیکي کول:** رسول الله ﷺ ابوذر رضي الله عنه ته وفرمایل: «اتَّقِ اللَّهَ حَيْثُمَا كُنْتَ وَأَتْبِعْ السَّيِّئَةَ الْحَسَنَةَ تَمْحُهَا وَخَالِقْ النَّاسَ بِخُلُقٍ حَسَنٍ»(۱)

**ژباړه:** هر چیرته چې یې، له الله تعالی څخه وېرېږه. له بدۍ نه وروسته نیکي کوه چې له منځه یې یوسي او د خلکو سره تعامل په ښو اخلاقو کوه.

**۲ـ له ګناه نه وروسته اودس کول، بیا دوه رکعته لمونځ او له خدای څخه ښښنه غوښتل**

رسول الله ﷺ فرمايي: «مَا مِنْ رَجُلٍ يُذْنِبُ ذَنْبًا فَيَتَوَضَّأُ فَيُحْسِنُ الْوُضُوءَ ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ فَيَسْتَغْفِرُ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا غَفَرَ لَهُ»(۲)

**ژباړه:** څوک چې یوه ګناه وکړي بیا په ښه توګه اودس وکړي ورپسې دوه رکعته لمونځ وکړي او له خدای ﷻ څخه ښښنه وغواړي الله ﷻ به ورته هرو مرو ښښنه وکړي.

**۳ـ پر کړاونو، ناروغیو او مصیبتونو باندې صبر کول:** رسول الله ﷺ فرمايي: «مَا يُصِيبُ الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ وَلَا وَصَبٍ وَلَا هَمٍّ وَلَا حُزْنٍ وَلَا أَذًى وَلَا غَمٍّ حَتَّى الشَّوْكَةِ يُشَاكُهَا إِلَّا كَفَّرَ اللَّهُ بِهَا مِنْ خَطَايَاهُ»(۳)

---

۱ـ مسند أحمد

۲ ـ مسند احمد

۳ – صحيح البخاري

**ژباړه:** مسلمان ته هيڅ ستوماني، ناروغي، تکليف، پريشاني، ضرر او غم نه رسېږي او آن ازغی يې په پښو کې نه ننوزي، مګر د ده ګناهونه پرې ښنل کېږي.

**په تله کې د پام وړ درانه عملونه**

ټول نيک عملونه د پام وړ دي او بايد دکوچني ګڼلو له کبله ترک نه شي، خو د نبوي سنتو د هداياتو په رڼا کې ځينې اعمال د عمل په تله کې ډېر دروند والی راولي، چې په لاندې توګه دي:

**۱ـ ښه اخلاق:** رسول الله ﷺ فرمايي: «مَا شَيْءٌ أَثْقَلُ فِي مِيزَانِ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ خُلُقٍ حَسَنٍ وَإِنَّ اللَّهَ لَيُبْغِضُ الْفَاحِشَ الْبَذِيءَ»(۱) **ژباړه:** د قيامت په ورځ د مؤمن د نيکی په پله کې له نيکو اخلاقو څخه درونده څيز نشته او الله ﷻ بد ويونکي ته د قهر په سترګه ګوري.

همدا راز نيک اخلاق د کامل مؤمن نښه ده. رسول الله ﷺ فرمايي: «أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا».۲ **ژباړه:** تر ټولو مؤمنانو د کامل ايمان خاوند هغه مؤمن دی چې تر ټولو يې اخلاق غوره وي.

**۲ـ ذکر:** د مسنونو اذکارو سرته رسول، لکه د (سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ سُبْحَانَ اللَّهِ الْعَظِيمِ) په کلماتو ذکر، ډېر وزن لري، رسول الله ﷺ په دې اړه فرمايي: «كَلِمَتَانِ خَفِيفَتَانِ عَلَى اللِّسَانِ ثَقِيلَتَانِ فِي الْمِيزَانِ حَبِيبَتَانِ إِلَى الرَّحْمَنِ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ سُبْحَانَ اللَّهِ الْعَظِيمِ»(۳) **ژباړه:** دوه کلمې دي چې په ژبه سپکې خو په تله کې درندې او الله ﷻ ته محبوبې دي دا د «سبحان الله وبحمده او سبحان الله العظيم» کلمې دي.

همدا راز د (الْحَمْدُ لِلَّهِ) په کلمې ذکر: رسول الله ﷺ فرمايي: «الْحَمْدُ لِلَّهِ تَمْلأُ الْمِيزَانَ»(٤) **ژباړه:** الحمد لله تله ډکوي.




۱ـ د انسانانو عملونه څه وخت تلل کېږي؟

۲ـ د انسانانو د عملونو د تللو د اثبات دلايل ذکر کړئ.

۳ـ د ګناهونو د محوه کولو اسباب ذکر کړئ.

۴ـ کوم عملونه د تلې په دروندوالي کې ډېر رول لري؟

---

١ – مسند الصحابة في الكتب الستة – (٣٨ / ١٢٥)

٢ – سنن أبي داود– ن – (٤ / ٣٥٤)

٣ – متفق عليه

٤ – صحيح مسلم – (١ / ١٤٠)

# حوض

انسانانو ته د عملنامو له سپارلو، حساب کولو او د مسلمانانو د عملونو له تول څخه وروسته مسلمانان د رسول اللهﷺ له حوض څخه اوبه څښي، چې تنده يې ورباندې ماتېږي. حوض هم د هغو مغيباتو له جملې څخه دی چې ځان پوهول او ايمان راوړل ورباندې لازم دي.

## د حوض تعريف

حوض د اوبو د غونډېدلو ځای ته ويل کېږي او دلته له حوض څخه مراد هغه حوض دی چې الله تعالی يې خپل نبي‌محمدﷺ ته د حشر په ميدان کې د ده د تکريم او عزت لپاره ورکوي، څو د ده امتيان ورڅخه اوبه وڅښي او خپله تنده ورباندې ماته کړي.

## د حوض د اثبات دلايل

هغه حوض چې الله تعالی يې خپل رسول، محمدﷺ ته په آخرت کې ورکوي په قرآن کريم او په صحيحو احاديثو ثابت دی:

الله تعالی په قرآن کريم کې فرمايلي:﴿إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ﴾ **ژباړه**: بې شکه مونږ تاته «کوثر» درکړی.

ډېرو علماوو له «کوثر» څخه په دې ځای کې د حوض معنا اخيستې.

د حوض اثبات په احاديثو کې هم شوی او په دې هکله روايت شوي احاديث متواتر دي. د هغو راويانو شمېر چې په دې باب يې احاديث روايت کړي دي له پنځوسو تنو څخه هم زياتېږي، نبي کريمﷺ په يو حديث شريف کې فرمايلي دي: عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا آنِيَةُ الْحَوْضِ قَالَ « وَالَّذِى نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لآنِيَتُهُ أَكْثَرُ مِنْ عَدَدِ نُجُومِ السَّمَاءِ وَكَوَاكِبِهَا أَلاَ فِى اللَّيْلَةِ الْمُظْلِمَةِ الْمُصْحِيَةِ آنِيَةُ الْجَنَّةِ مَنْ شَرِبَ مِنْهَا لَمْ يَظْمَأْ آخِرَ مَا عَلَيْهِ يَشْخُبُ فِيهِ مِيزَابَانِ مِنَ الْجَنَّةِ مَنْ شَرِبَ مِنْهُ لَمْ يَظْمَأْ عَرْضُهُ مِثْلُ طُولِهِ مَا بَيْنَ عَمَّانَ إِلَى أَيْلَةَ مَاؤُهُ أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ وَأَحْلَى مِنَ الْعَسَلِ »[1] **ژباړه**: ابوذرﷺ فرمايي: ما له رسول اللهﷺ څخه پوښتنه وکړه چې د حوض **لوښي** څومره دي؟ نبي کريمﷺ وفرمايل: د لوښو شمار يې د آسمان له ستورو څخه زيات دی، له هغو ستورو څخه چې په تپه تياره شپه کې وي. هر څوک چې له دې

۱ - رواه مسلم.

حوض څخه اوبه وڅښي هېڅکله به تږى نه شي. له جنت څخه پکې دوې ناوې اوبه تويېږي. هر څوک چې لدې حوض څخه اوبه وڅښي هېڅکله به تږى نه شي، پلنوالى او اوږدوالى يې سره برابر دي، او دومره فاصله لري لکه له عمان څخه تر ايلې پورې (عمان او ايله دوه ښارونه دي) اوبه يې له شيدو څخه زياتې سپينې او تر شاتو ډېرې خوږې دي.

په يو بل حديث شريف کې رسول کريمﷺ فرمايلي دي: «حَوْضِى مَسِيرَةُ شَهْرٍ وَزَوَايَاهُ سَوَاءٌ وَمَاؤُهُ أَبْيَضُ مِنَ الْوَرِقِ وَرِيحُهُ أَطْيَبُ مِنَ الْمِسْكِ وَكِيزَانُهُ كَنُجُومِ السَّمَاءِ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلاَ يَظْمَأُ بَعْدَهُ أَبَدًا »[۱] **ژباړه:** زما حوض د يوې مياشتې په اندازه فاصله لري. زاويې يې ټولې سره برابرې دي. اوبه يې له سپينو زرو څخه ډېرې سپينې دي. بوى يې له مشکو زيات خوږ دى. لوښې يې دومره زيات او داسې ځلېدونکي دي لکه د آسمان ستوري، هر څوک چې لدې حوض څخه اوبه وڅښي هېڅکله به تږى نه شي.

**په حوض باندې د ايمان حکم**

په حوض باندې ايمان او يقين لازم دى. هغه څوک چې حوض مني، د ثواب مستحق ګرځي او هغه څوک چې له حوض څخه منکر شي، بدعتي او فاسق دى.

**څوک له حوض څخه محروميږي؟**

امام بخاري (رح) له حضرت انسؓ څخه روايت کوي چې نبي کريمﷺ وفرمايل: «لَيَرِدَنَّ عَلَيَّ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِي الْحَوْضَ حَتَّى عَرَفْتُهُمْ اخْتُلِجُوا دُونِي فَأَقُولُ أَصْحَابِي فَيَقُولُ لَا تَدْرِي مَا أَحْدَثُوا بَعْدَكَ»[۲] **ژباړه:** خامخا به زما ځينې اصحاب زما خواته د حوض (غاړې ته) راشي، چې زه به يې پېژنم. بيا به له ما څخه وګرځول شي، نو زه به وايم دا زما ملګري دي، نو و به وايي: ته نه پوهېږې چې دوى له تا وروسته څه چارې (په دين کې) راپيدا کړې وې.

همدارنګه په يو بل حديث شريف کې چې اسماء بنت أبي بکر صديق رضي الله تعالى عنهما روايت کړى، رسول اللهﷺ فرمايلي دي: «إِنِّى عَلَى الْحَوْضِ حَتَّى أَنْظُرَ مَنْ يَرِدُ عَلَيَّ مِنْكُمْ وَسَيُؤْخَذُ أُنَاسٌ دُونِى فَأَقُولُ يَا رَبِّ مِنِّى وَمِنْ أُمَّتِى. فَيُقَالُ أَمَا شَعَرْتَ مَا عَمِلُوا بَعْدَكَ وَاللَّهِ مَا بَرِحُوا بَعْدَكَ يَرْجِعُونَ عَلَى أَعْقَابِهِمْ»[۳] **ژباړه:** زه به په حوض باندې يم او ګورم به چې له تاسو

---

۱ – رواه مسلم.

۲ – رواه البخاري.

۳ ـ رواه مسلم

څخه څوک ماته راځي؟ او ز ما له مخې به ځینې خلك وګرځول شي، نو زه به وایم، اې الله ﷻ! دا زما او زما له امت څخه دي، نو وبه ویل شي، آیا ته خبر نه یې په هغه څه چې دوی له تا څخه وروسته کول؟ زما دې په الله تعالی قسم وي چې دوی له تا څخه وروسته تل په خپلو پوندو باندې بېرته ګرځېدل.

نو هر هغه څوك چې د الله تعالی له دین څخه واوړي او یا په دین کې نوی شی پیدا کړي هغه به د نبي کریمﷺ له حوض څخه وشړل شي او هېڅکله به له دې حوض څخه اوبه ونه څښي.




١. حوض تعریف کړئ.
٢. د حوض د اثبات دلایل ذکر کړئ.
٣. په حوض باندې د ایمان حکم بیان کړئ.
٤. څوك حوض ته نه پرېښودل کېږي؟

دريم لوست

## د صراط پل

کله چې د حشر په ميدان کې له انسانانو سره حساب او کتاب وشي، ملائکې به د الله‌تعالی په امر سره د دوی د تېرېدلو لپاره د دوزخ په ملا باندې پل کېږدي او دوی به پرې تېرېږي.

**د صراط تعريف**

صراط د ژبې له مخې لويې لارې ته وايي او په اصطلاح کې: د هغه پُل څخه عبارت دی چې د ټولو خلکو لپاره به د قيامت په ورځ پر جهنم باندې اېښودل کېږي. نيکان به پرې تېرېږي او بدان به ورڅخه په جهنم کې لوېږي.

کله چې له انسانانو سره د محشر په ميدان کې محاسبه وشي، نو وروسته به الله ﷻ ملايکو ته امر وکړي چې د جهنم په ملا باندې پُل کيږدئ. بندګانو ته به حکم وشي چې د پل څخه تېر شي، پر پل تېرېدل د بنده په عمل پورې اړه لري،که د چا عمل ښه (نېک) وي هغه به ورڅخه په ډېره اسانۍ تېرېږي او که د چا عمل بد وي هغه به ورڅه په ډېره سختۍ تېرېږي او يا به په جهنم کې لوېږي.

**د صراط د پُل د اثبات دليل**

د صراط پُل او ورباندې تېرېدل په قرآنکريم، نبوي احاديثو او د امت په اجماع سره ثابت دي.

**أ- قرآن کريم:** الله ﷻ فرمايلي دي: ﴿وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا﴾ [مريم: ٧١]

**ب-ژباړه:** نشته هيڅوک له تاسې څخه مګر دا چې جهنم ته به وارديږي.

ځينو مفسرينو د ورود ترجمه په عبور کړې او ويلي يې دي چې ټول خلک به يو ځل د قيامت په ورځ د صراط په پُل تېرېږي.

**ت- حديث شريف:** په ګڼو احاديثو کې د صراط د پل يادونه شوې ده، لکه چې پيغمبر ﷺ فرمايي: ﴿وَيُضْرَبُ جِسْرُ جَهَنَّمَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُجِيزُ وَدُعَاءُ الرُّسُلِ يَوْمَئِذٍ اللَّهُمَّ سَلِّمْ سَلِّمْ﴾[١]

---

١_ صحيح البخاري ت - (١٦ / ٤١٩). صحيح مسلم - (١ / ١١٢)

**ژباړه:** او بیا به پر جهنم پل وتړل شي. پیغمبرﷺ وفرمایل: نو زه به اول هغه څوک یم چې په پُل به تېر شم او ټول پیغمبران به په دغه وخت کې دا دعاء لولي: ای الله سلامتي غواړو، ای الله سلامتي غواړو.

ج ـ د اهل سنت او جماعت ټولو علماوو په دې اجماع کړې چې د صراط پل حق دی.

**د صراط د پل صفت**

په قران کریم کې د صراط د پل ذکر په اجمالي توګه شوی دی خو په احادیثوکې د صراط د پُل په اړه پوره او کره معلومات ذکر شوي دي.

لنډیز یې دا دی چې هېڅوک هم په پله باندې د هغه د پلن والي او پوخوالي له کبله نه شي تېرېدای، بلکه څوک چې ورباندې تېرېږي هغه به د خپل نېک عمل او د الله تعالی دتوفیق له امله وربانديې تېرېږي.

**د صراط په پُل د تېرېدونکوحال**

د صراط په پل تېرېدونکي انسانان به د خپلو ښو او بدو عملونو په اعتبار سره په یو شان نه وي. څوک به پرې ډېر تیز د برېښنا په شان تېرېږي. څوک به پرې دتیز باد په شان تېریږي. څوک به د ښه ځغلنده آس په شان پرې تېریږي. څوک به پرې په منډه تېرېږي. څوک به پرې لږ ژر تېریږي. څوک به د عادي حالت په شان پرې تېریږي. خو ځینې نور بد عمله انسانان به د صراط په پله په چنګکونو کې نښلي او سر کښته به په جهنم کې ورغورځیږي.

**د صراط په پُل ایمان درلودل**

موږ په دې کلك ایمان لرو چې د قیامت په ورځ به الله ﷻ د دوزخ په منځ باندې د صراط پُل ږدي او انسانان به پرې تېریږي او دا یوحقیقي پل دی چې الله ﷻ ته یې پوره کیفیت معلوم دی.




۱. د صراط لغوي او اصطلاحي معنا ذکر کړئ.
۲. په قیامت کې به تر ټولو لومړی څوک د صراط پر پُل تېریږي؟
۳. د صراط پُل به په کوم ځای کې ایښودل کیږي؟
٤. د صراط پُل به حقیقي وي اوکه مجازي؟

څلورم لوست

# جنت

لکه چې ومو لوستل الله ﷻ به انسانان ژوندي را پاڅوي اوهر يو انسان ته بـه خپلـه عملنامـه په لاس کې ورکړل شي. عملونه به يې وتلل شي. د چا د عملونو تله چې درنده شـوه هغـه به سرلوړی جنت ته ځي.

**د جنت تعريف**

جنت په عربي ژبه کې هغه پراخه باغ تـه ويـل کېږي چـې ځمکـه يـې پـه ډول ډول ونـو پوښل شوې وي. په شرع کې د هغه کور څخه عبارت دی چې الله ﷻ د مؤمنانو لپاره تيـار کړی، په ډول ډول نعمتونو ښکلی شوی دی او د تل لپاره به هلته اوسېږي.

**د تعريف شرح**

د جنت لفظ په عربي ژبه کې په مختلفو معناګانو اسـتعمال شـوی دی، لکـه هغـه څيـز چـې لـه سترګو څخه پټ وي. هغه باغ او باغچه چې پـه کـې رنګـا رنـګ بـوټي او مېوه لرونکـې ونـې وي او په سيورو يې د ځمکې مخ پوښلی وي، خـو د عقايـدو پـه علـم کـې جنـت پـه آخـرت کې لـه هغـه کـور څخـه عبـارت دی چـې ډول ډول نعمتونـه بـه پـه کـې وي او الله ﷻ د هغـو خلکو لپاره تيار کړی دی چې په الله ﷻ او د هغـه پـه ملايکـو، رسـولانو، کتـابونو او د آخـرت په ورځ کلك ايمان لري، په دنيا کـې يـې خپلـې نفسي غوښـتنې نـه دي منلـې د الله او د هغـه د پېغمبر ﷺ په لارښوونه ژوند تېروي. جنـت ډېـر نومونـه لـري، لکـه د سـلامتيا کـور، د دايمـي استوګنې ځای، د ورتللو ځای، فردوس، د نعمتونو کور او داسې نور.

**د جنت د اثبات دلايل**

**قرآن کريم**

الله ﷻ د جنت د پيدايښت په اړه فرمايلي دي: ﴿أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ﴾ [آل عمران: ١٣٣]

**ژباړه:** (هغه جنت) چې تيارکړای شوی دی د پرهېزګارانو لپاره.

په بـل آيـت کـې الله تعـالى فرمـايي: ﴿سَابِقُوا إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أُعِدَّتْ لِلَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ﴾ [الحديد: ٢١]

**ژباړه**: د خپل ځښتن له لوري ښښنې ته (هڅه وکړئ)یو له بل څخه مخکې شئ او د هغه جنت خوا ته چې، د هغه پراختیا د ځمکې او آسمانونو په څېر ده او د هغه چا لپاره تیار کړای شوی دی چې په الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه پر پیغمبرانو یې ایمان راوړی وي.

**حدیث**

په بې شمیره احادیثو سره د جنت وجود ثابت دی.

نبي کریم ﷺ په یو حدیث شریف کې فرمایلي دي: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ «قَالَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ أَعْدَدْتُ لِعِبَادِى الصَّالِحِينَ مَا لاَ عَيْنٌ رَأَتْ وَلاَ أُذُنٌ سَمِعَتْ وَلاَ خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ».(۱)

**ژباړه**: ابوهریره رضي الله عنه له رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چې الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمایلي دي: ما د خپلو نېکو بنده ګانو لپاره داسې نعمتونه تیارکړي دي چې نه سترګو لیدلي، نه یې غوږونو صفت اوریدلی او نه یې کوم انسان په زړه کې تصورکړی دی.

له پورتني حدیث څخه په ډاګه معلومیږي چې جنت اوس هم موجود دي.

**جنتیان**

جنت د پرهیزګارانو، نیک عملو، ریښتینو، دالله تعالی او د هغه د رسول ﷺ د تابعدارانو، په ایمان د استقامت د خاوندانو، الله جَلَّ جَلَالُهُ ته د نیژدې کسانو او د هغو خلکو ځای دی، چې د الله تعالی حکمونو ته غاړه ږدي، او له نواهیو څخه یې ځان ساتي.

**جنت ته د جنتیانو تلل**

جنتیان به جنت ته خوشحاله او سپاره ډلې ډلې روان وي.الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمایلي دي: ﴿يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمَنِ وَفْدًا﴾ [مريم: ۸۵] **ژباړه**: او یاده کړه [ای محمده] هغه ورځ چې را جمع به کړو موږ پرهیزګاران د الله جَلَّ جَلَالُهُ حضور ته په داسې حال کې چې ډلې ډلې به (په سپرلیو سپاره) وي.

حضرت علي رضي الله عنه فرمایي: چې دوی به پیاده نه بول کیږي، بلکې دوی به په داسې سپرلیو سپاره وي چې مخلوقاتو به هغه سپرلۍ نه وي لیدلې.(۲)

---

۱ - صحيح مسلم

۲ـ تفسير الطبري – (۱۸ / ۲۵٤)

**په جنت ایمان لرل**

پدې بانـدې عقیـده درلـودل لازم دي چې جنـت د نـورو مخلوقـاتو څخـه مخکـې الله ﷻ پیداکړی دی، او اوس هم موجود دی، تل به وي، او هیڅ فنا نه لري.[1]




۱. جنت تعریف کړئ.

۲. د جنت د اثبات دلائل بیان کړئ.

۳. جنت د کومو خلکو ځای دی؟

٤. جنت ته به جنتیان څرنگه بیول کیږي؟

٥. په جنت باندې د ایمان حکم بیان کړئ.


**کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د جنت د توصیف او هغو عملونـو چې جنـت تـه د تللـو لامـل گرځـي یـوه مقاله ولیکي.

---

۱ـ الفقه الأکبر – (۱ / ٦۳)، العقیدة الطحاویه – (۱ / ٥۱)

# جهنم (دوزخ)

کله چې الله ﷻ ټول انسانان له قبرونوڅخه را پورته کړي، هر انسان ته به خپله عملنامه ورکړل شي او د مسلمانانو عملونه به وتلل شي، نو نه منونکي او بد عمله خلك به دوزخ ته ځي.

**د جهنم تعریف:** جهنم د کندې معنا لري او په شرع کې جهنم د هغه اور نوم دی چې الله ﷻ د کافرانو او ګناهکارو مسلمانانو د عذابولو لپاره پیدا کړی دی.(۱)

## د تعریف شرح

جهنم له هغه اور څخه عبارت دی چې الله تعالی د کافرانو، مشرکانو، د پیغمبر ﷺ د رسالت د منکرینو، او د ګناهکارانو مؤمنانو لپاره پیداکړی دی. جهنم د کافرانو لپاره ابدي ځای دی، او ګناهکار مؤمنان به په کې د خپلو ګناهونو او جرمونو په اندازه پراته وي او بیا به ورڅخه راوېستل کیږي. جهنم ډېر نومونه لري لکه: لظی، حطمه، سعیر، سقر، جحیم، هاویه او هم زیاتې طبقې او درجې لري چې یوه له بلې څخه سخته او هلاکوونکې دی.

## د دوزخ د اثبات دلایل

الله تعالی په قرآن کریم کې د دوزخ په اړه فرمایلي دي: ﴿فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ﴾ [البقرة: ٢٤]

**ژباړه:** له هغه اور څخه ووېرېږئ چې د هغه خس(د سون توکي) به انسانان او کاڼي وي چې د حق د منکرانو لپاره تیارکړای شوی دی.

په بل آیت کې الله تعالی فرمايي﴿وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ﴾ [آل عمران: ١٣١] **ژباړه:** (ځانونه له هغه اور څخه وساتئ چې د کافرانو لپاره تیار شوی دی)

همدا راز په بې شمېره احادیثو کې د دوزخ یادونه شوې او ټول امت یې په شتون اجماع کړې.

---

١ـ مفردات الفاظ القرآن للراغيب الاصفهاني (١ / ٢٠١)، القاموس الفقهي – (١ / ٧٢)

## جهنميان (دوزخيان)

جهنم د کافرانو، منافقانو، مجرمانو، سرکښانو، ظالمانو، گمراهانو، د آخرت په مقابل کې د دنيا خوښوونکو، بد عملو او د هغه چا ځای دی چې د الله ﷻ او د هغه له رسول ﷺ سره دښمني لري او يا يې له اوامرو څخه سرغړونه کوي او د حق لارې ته نه راگرځي.

## جهنم ته د دوزخيانو وړل

ځينې خلك به جهنم ته پړمخې مخونو وړل کېږي. له رسول الله ﷺ څخه يوه صحابي پوښتنه وکړه چې څرنگه به دوی په مخونو وړل کيږي؟ پيغمبر ﷺ ورته وفرمايل: هغه ذات چې دوی په پښو بېولای شي په دې هم قادر دی چې په مخونو يې بوسي.[1]

جهنميان به د څارويو په شان رمې رمې شړل کېږي او له هر لوري څخه به ملايکې ورباندې آوازونه کوي. الله ﷻ فرمايي: ﴿وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَى جَهَنَّمَ زُمَرًا﴾ [الزمر: ٧١] **ژباړه:** شړل کېږي هغه کسان چې کافران شوي دي طرف د دوزخ ته ډلې ډلې.

په بل آيت کې الله تعالى فرمايي: ﴿يَوْمَ يُدَعُّونَ إِلَى نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا﴾ [الطور: ١٣]

**ژباړه:** په کومه ورځ چې دوی به په ټېلو ټېلو د جهنم د اور خواته بوتلل شي.

او مخکې له دې چې جهنم ته داخل شي د جهنم داسې آواز به واوري چې د دوی د غوږونو پردې به څيرې کړي، اوزړونه به يې په سخته ويره او هيبت کې پرېوزي. الله ﷻ فرمايي: ﴿إِذَا رَأَتْهُمْ مِنْ مَكَانٍ بَعِيدٍ سَمِعُوا لَهَا تَغَيُّظًا وَزَفِيرًا﴾ [الفرقان: ١٢]

**ژباړه:** هغه اور چې کله له ليرې نه دوی ووينې، نو دوی به د هغه د غضب او تاو آوازونه واوري.

او هم به ډېر زيات تږي وي. الله ﷻ فرمايي: ﴿وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَى جَهَنَّمَ وِرْدًا﴾ [مريم: ٨٦]

**ژباړه:** او مجرمان به د تږو څارويو په شان د دوزخ لورې ته وشړو.

همدارنگه کله چې دوزخيان جهنم ته بوول کيږي دوی به ړانده شي هيڅ به نه ويني، هم به گونگيان شي ژبې به يې نه چليږي، او هم به کاڼه شي هيڅ به نه اوري. الله تعالى فرمايلي دي: ﴿وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى وُجُوهِهِمْ عُمْيًا وَبُكْمًا وَصُمًّا﴾ [الإسراء: ٩٧]

**ژباړه:** راجمع به کړو دغه خلك موږ د قيامت په ورځ پرمخونو (پړ مخې)، په داسې حال کې چې ړانده، گونگيان او کاڼه به وي.

---

١_تفسير الطبري ١٩\٢٦٨

او کله چې جهنم ته ورل کېږي ډېر د ذلت او خوارۍ په حالت کې به ورل کېږي. الله تعالی فرمايي: ﴿قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا سَتُغْلَبُونَ وَتُحْشَرُونَ إِلَى جَهَنَّمَ وَبِئْسَ الْمِهَادُ﴾ [آل عمران: ۱۲]

**ژباړه:** (ای محمده!) کومو خلکو چې ستا د دعوت له منلو نه انکار کړی دی، هغوی ته ووايه! هغه وخت نږدې دی چې تاسې به مغلوب شئ د دوزخ لوري ته به په منډو منډو ور وستل شئ او دوزخ ډېر بد استوګنځی دی. او بل ځای الله ﷻ فرمايي: ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيَاطِينَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا﴾[مريم: ٦٨]

**ژباړه:** ستا په رب قسم چې موږ به هرو مرو دوی ټول او له دوی سره شيطانان هم ترلي راولو بيا به يې د دوزخ چار چاپېر سر ښکته په ګونډو را حاضر کړو.

او دا د ذلت ډېر بد حالت دی چې الله ﷻ تصوير کړی دی.

کله چې دوی د جهنم خواته ور وستل شي او د اور وېروونکی حالت ويني، نو ډېر زيات به پښيمانه شي او د دې ارمان به وکړي چې کاشکې يوځل بيا دنيا ته بوول شوي وای تر څو ايمان مو راوړی وای، خو له اور څخه به خلاصون نه مومي. الله ﷻ فرمايي: ﴿وَلَوْ تَرَى إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَا لَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِآيَاتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾.

[الأنعام: ۲۷] **ژباړه:** کاشکې تا د هغه وخت حالت ليدلی وای چې دوی د دوزخ په غاړه ودرول شي، په دې وخت کې به دوی ووايي: کاشکې موږ دنيا ته يوځل بيا لېږل شوي وای، نو د خپل رب نښانې به مو دروغ نه ګڼلې او ايمان به مو راوړی وو.

## په جهنم (دوزخ) د ايمان حکم

د دوزخ په شتون عقيده درلودل فرض دي او منکر يې د اسلام له دايرې څخه بهر ګڼل کېږي.[1]




١. جهنم تعريف کړئ.
٢. د دوزخ د اثبات دلايل بيان کړئ.
٣. دوزخ د کومو خلکو ځای دی.
٤. کوم عملونه دوزخ ته د داخلېدو لامل کېږي؟
٥. دوزخيان به څرنګه دوزخ ته بېول کېږي؟
٦. په دوزخ باندې د ايمان حکم بيان کړئ.

---

١_ الفقه الأكبر -(١ / ٦٣)، العقيدة الطحاويه -(١ / ٥١)

# د ايمان نواقض (۱)

## اكبر شرك

شرك د انسان د هلاكت لامل او تر ټولو لوی ظلم دی. شـرك هغـه گنـاه ده چـې الله تعـالی يې نه بښي.

### د شرك تعريف

شرك په لغت كې حصې او برخې ته ويل كېږي چې په گډون، سيالۍ او شراكت باندې يې هم اطلاق شوی دی او په اصطلاح كې له الله تعالی سره په ذات، صـفاتو، تـصرفاتو او عبادت كې شريك پيدا كولو ته شرك ويل كېږي.

۱. **په ذات كې شرك:** لكه څوك چې دوه خدايان ومني.
۲. **په صفاتو كې شرك:** لكه څوك چې د الله تعالی د صفاتو په څېر نورو مخلوقاتو تـه صفات ثابت وگڼي، له اسبابو پرته څوك په غيبو عالم وگڼي، د هغه تعالی په ډول بـل څوك قادر او سميع وگڼي او يا په صفاتو كې تمثيل يا تكييف وكړي.
۳. **په تصرفاتو كې شرك:** دې ته وايي چې له اسبابو پورته متصرف د كار جـوړوونكی او د حاجت پوره كوونكی يا مشكل كشا له الله تعالی پرته بل څوك وگڼل شي.
٤. په عبادت كې شرك دې ته وايي چې له الله تعالی سره بل چا تـه د بنـدگۍ سـر ټيـټ كړای شي، د الله تعالی په څنگ كې يې طاعت، ستاينه، يـاتعظيم پـه دې بنيـاد وشـي چې په غيبي قدرت سره دگټې او زيان واكمن دی.

### د شرك ډولونه

شرك په دوه ډوله دی: ستر شرك (الشرك الأكبر) او كوچنی شرك(الشرك الأصغر).

ستر شرك چې له الله تعالی سره څوك سيال ونيول شي، داسې عبـادت يـې وشـي لكـه د الله تعالی، دا ډول شرك انسان له اسلام څخه باسي، ټول عملونه يې لـه منځه وړي او كـه په دې شرك مبتلا شخص له توبې پرته ومري، نو د تل لپاره به په دوزخ كې وي.

**د قرآن كريم د هداياتو له استقراء څخه معلومېږي چې ستر شرك په څلور ډوله دی:** په دعاء او بلنه كې شرك، په نيت او قصد كې شرك، په طاعـت كـې شـرك او پـه محبـت كې شرك، چې په لاندې توگه بيانېږي:

**۱ـ د دعاء او بلنې شرک:** دا ځکه چې دعاء د عبادت لـه مهمـو ډولونـو څخـه ده. رسـول اللهﷺ فرمايلي: (الدعاء هـو العبـادة)[1]، د حـديث شـريف ژبـاړه؟ دعـا عبـادت ده. الله تعـالی فرمـايي: ﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ﴾ [غافر: ٦٠] **ژباړه:** او ستاسو څښتن وايي ما رابلئ، بلنه مو قبلوم. يقينـا هغـه کـسان چې زما له عبادت څخه په لويی مخ اړوي، ژر به جهنم ته د ذلت په حال کې ننوزي.

څرنګه چې دعاء عبادت دی، له الله تعالی بل چا ته يې اړول شرک ګڼل کېږي. الله تعـالی فرمـايي: ﴿وَمَنْ يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهُ بِهِ فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِنْدَ رَبِّهِ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ﴾ (المؤمنون: ١١٧) **ژباړه:** او څوک چې له الله تعالی سره بـل خـدای رابلـي سـره لـه دې چـې هيڅ دليل (په دې کارکې) نه لري، نـو دده حـساب يـوازې د ده لـه څـښتن سـره دی، بـې شکه کافران بری نه مومي.

همـدا راز فرمـايي: ﴿فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ ﴾ (العنکبوت: ٦٥) **ژباړه:** کله چې دغه خلک په بېړۍ کښې سپرېږي نو د الله تعالی نه په خالص اعتقاد سره دعـا غـواړي، بيـا کلـه چـې الله ﷻ دوی وژغـوري (وچـې تـه يـې راولي) نو ناڅاپه دوی بيا په شرک کولو لاس پورې کړي.

له دې څخه په ډاګه څرګنديږي چې له الله تعالی پرته د بل چا رابلل او له اسبابو پورته لـه بل چا څخه مرسته غوښتل شرک دی.

**۲ـ د نيت او قصد شرک:** دا شرک دې ته وايي چې خاوند يې په خپلو ديني اعمالو سـره يوازې دنيوي مقاصدو ته ځان رسول وغواړي او په کلي توګه يې موخه د ځـان ښـودنه او رياء وي، د منافقانو په دود د الله تعالی رضا ببخي ونه غواړي. داسـې شـخص هـم پـه سـتر شرک کې غورځېدلی.

الله تعــالی فرمــايي: ﴿مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ۝أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ إِلَّا النَّارُ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا وَبَاطِلٌ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ [هود: ۱۵، ۱۶] **ژباړه:** کوم خلک چې (يوازې) د همدې دنيا د ژوند او د هغـې د ښـکلاو غوښتونکي وي، د هغو د کړو وړو ټوله مېوه موږ همدلتـه ورکـوو او پـه دې کـې لـه هغـو سره هېڅ کمی نه کېږي، خو په آخرت کې د دغه راز خلکو لپاره له اوره پرتـه نـور څـه

[1] - رواه احمد والترمذی

نشته (هلته به معلومه شي) څه چې هغوی په دنیا کې کړیدي هغه ټول خاورې ایرې شول او اوس د هغو ټول کړه وړه محض باطل دي.

**۳ـ د طاعت شرک:** هغه شرک ته وایي چې یو څوک د حرامو او حلالو په هکله د الله تعالی د دین په خلاف د مخلوق ومني او په زړه کې دا وانګېري چې مخلوق د حلالو د تحریم او یا د حرامو د تحلیل واک لري.

الله تعالی د نصاراوو په هکله فرمایي: ﴿اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَهًا وَاحِدًا لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ (التوبة: ۳۱). **ژباړه:** دوی خپل عالمان او روحانیون له الله ﷻ پرته خپل اربابان نیولي دي او همدغه راز مسیح ابن مریم هم. په داسې حال کې چې دوی ته له یو معبود نه پرته د بل هېچا د بنده ګۍ کولو حکم نه وو ورکړی شوی، هغه ذات چې له هغه پرته بل هېڅوک د عبادت وړ نشته، پاک دی له هغو مشرکانه خبرو څخه چې دوی یې کوي.

**۴ـ د محبت شرک:** هغه شرک چې یو څوک له الله تعالی پرته بل چا سره داسې مینه ولري چې د هغه د لوی ګڼلو له کبله د عبودیت او عاجزۍ سر ورته ښکته کړي، سره له دې چې د اجلال او تعظیم لپاره یوازې الله تعالی ته په مینه د عاجزۍ سر ښکته کېږي او عبادت یې کېږي.

الله تعالی فرمایي: ﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَتَّخِذُ مِنْ دُونِ اللَّهِ أَنْدَادًا يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ اللَّهِ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبًّا لِلَّهِ﴾ (البقرة: ۱٦۵). **ژباړه:** ځینې خلک داسې دي چې له الله ﷻ نه پرته نور د هغه سیالان ګرځوي او پر هغو داسې مین دي لکه چې څنګه له الله ﷻ سره مینه لرل ښايي. په داسې حال کې چې ایمان لرونکو ته تر هر چا زیات الله تعالی ګران وي.

**د اکبر شرک حکم:**

د دې ډول شرک خاوند مشرک بلل کېږي، د ابد لپاره به په دوزخ کې وي، هېڅکله له دوزخ څخه نه ایستل کېږي او د هېڅ شفاعت کوونکي شفاعت د ده په حق کې نه قبلېږي.




۱. شرک تعریف کړئ.
۲. شرک په څو ډوله دی؟
۳. اکبر شرک په څو ډوله دی؟
٤. آیا مشرک ته الله تعالی ببښنه کوي؟
٥. په نیت او قصد کې شرک څه ته وایي؟
٦. د دعاء او بلنې شرک څه شی دی؟
۷. د اکبر شرک حکم بیان کړئ.



**کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د اکبر شرک په اړه یوه مفصله مقاله ولیکي.

# اصغر شرک

د اکبر شرک ډولونه او حکم مو په مخکې لوست کې ولوست. په دې لوست کې د اصغر شرک تعریف او ډولونه لولو.

### د اصغر شرک تعریف

اصغر شرک هغه ګناه ده چې الله تعالى په قرآن کريم او يا نبي کريمﷺ په خپلو مبارکو احاديثو کې د زجر او تهديد له امله د شرک په نامه سره ياد کړي دي، خو هغه شرک نه دی چې له اسلام څخه د وتلو لامل وګرځي او يوازې هغو ګناهونو ته د شرک نسبت کولای شو چې شارع په شرک سره نومولي وي، چې په دوه ډوله دی:

۱. **ښکاره شرک:** دا شرک په الفاظو او افعالو کې منځ ته راځي.

أ. **الفاظ:** لکه، له الله تعالى پرته په بل شي سوګند (قسم) خوړل، ابن عمر رضي الله تعالى عنهما فرمايلي دي چې له الله تعالى پرته په بل شي سوګند مه کوئ، ځکه ما له رسول اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه اوريدلي چې فرمايل يې: «مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللَّهِ فَقَدْ كَفَرَ وَأَشْرَكَ»[۱] **ژباړه:** هغه څوک چې له الله تعالى پرته په بل شي قسم وخوري يقيناً کافر او مشرک شو.

ب. **افعال:** لکه د ځينو ناروغيو د درملنې لپاره له هغو شيانو څخه ګټه اخيستل چې الله‌تعالى هغه د دفعه کولو اسباب نه وي معرفي کړي. لکه څرنګه چې نبي کريمﷺ فرمايلي دي: «مَنْ عَلَّقَ تَمِيمَةً فَقَدْ أَشْرَكَ»[۲] **ژباړه:** هر څوک چې (پخپله يا د ماشومانو او يا د حيوان په غاړه کې) يو څه شی ځوړند کړي، يقيناً چې ده د شرک کار تر سره کړ.[۳]

۲. **خفي شرک:** په نيتونو او ارادو کې شرک ته خفي شرک ويل کيږي، لکه: رياء. رياء دې ته ويل کيږي چې يو څوک نيک کار د دې لپاره تر سره کړي چې خلک

---

۱ – مسند أحمد – (۱۰ / ۲٤۹)

۲ – مسند أحمد – (۲۸ / ٦۳۷)

۳ – هغه شيان چې د جاهليت په وخت کې مروج وو او مشرکانو به د خپلو ماشومانو ياحيواناتو په غاړه کې د دې لپاره ځوړندول چې نظر نه شي. د هغو ټولو شيانو ځوړندول حرام دي، لکه: کونجکې، مرۍ، بندونه، ګوجر او داسې نور.

يې ووينې او بيا ووايې چې فلانى ډېر ښه سړى دى او د ده مدحه وکړي. الله تعالى په دې اړه فرمايلي دي: ﴿فَمَنْ كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا﴾ [الكهف: ١١٠] **ژباړه:** نو څوک چې له خپل پروردګار سره د يو ځاى کېدو په هيله وي هغه ته په کار دي چې ښه عمل وکړي او په بنده ګۍ کې له خپل رب سره بل څوک شريک نه کړي.

نبي کريمﷺ فرمايلي دي: «إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمُ الشِّرْكُ الأَصْغَرُ» ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ ، وَمَا الشِّرْكُ الأَصْغَرُ؟ قَالَ: «الرِّيَاءُ»[1] **ژباړه:** يقيناً چې زه په تاسو باندې له ټولو شيانو څخه زيات له اصغر شرک څخه وېرېږم. صحابه وو پوښتنه وکړه، اې د الله رسوله! اصغر شرک څه شى دى؟ رسول اللهﷺ وفرمايل: رياء.

**د اصغر شرک حکم**

اصغر شرک له اسلام څخه د وتلو لامل نه دى، خو د اکبر شرک لپاره وسيله ده او خاوند ته يې د مشرک نسبت نه کېږي.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د اکبر شرک او اصغر شرک د حکمونو په اړه يو له بل سره مباحثه وکړي.




١. اصغر شرک تعريف کړئ.
٢. د اصغر شرک څو مثالونه بيان کړئ؟
٣. اصغر شرک په څو ډوله دى؟
٤. ښکاره شرک په څو ډوله دى؟
٥. د اصغر شرک حکم بيان کړئ.

---

١ – المعجم الكبير للطبراني – (٤ / ٣٣٨)

# د ایمان نواقض[۲]

## ستر کفر

لکه څرنګه چې شرك سخت ناوړه عمل، لـه توحيـد سـره منـافي او د توحيـد لـه نواقـضو څخه دی، همدارنګه کفر هم له ایمان سره منافي او د ایمان له نواقضو څخه دی.

**د کفر تعریف**

کفر په لغت کې پټولو ته وايي او د عقايـدو د علـم پـه اصـطلاح کـې د ایمـان ضـد ګڼـل کېږي، يعني په الله تعالی او د هغه په رسول باندې ایمان نه لرل، یا د هغـوی لـه لارښـوونو څخه انکار کول او نه منل کفر دی. که دغه نه ایمان راوړل يې د دروغ ګڼلو لـه املـه وي او یا یوازې په هغه کې د شك، تردید، حسد، کبر او یا ځینو نورو نفسي غوښـتنو لـه املـه وي، ټول کفر دی.

**د تعریف شرح**

د عقایدو د علم په اصطلاح کې په الله تعالی او په هغـه شـریعت چـې د ده رسـول راوړی دی، ایمان نه درلودل، یا پر ځینو هغو شیانو باندې چې ایمان راوړل پرې فرض دي، ایمان راوړل او له ځینو نورو څخه يې انکار کول، که يې دروغ وګڼي او یا شـك پکـې وکـړي او یا د حسد، کبر او یا ځینو نـورو نفـسي غوښـتنو لـه املـه لـه الهـي لارښـوونو څخـه مـخ واړوي، ټول کفر ګڼل کېږي. ایمان داسې یو حقیقـت دی چـې تجزیـه نـه قبلـوي. داسـې نشي کېدای چې په ځینو يې ایمان راوړي او له ځینو نورو څخه يې منکر شي.

**د کفر ډولونه**

کفر په دوه ډوله دی:

۱. اکبر کفر (لوی کفر).
۲. اصغر کفر (کوچنی کفر).

**لومړی:** اکبر کفر: دا کفر د ایمان ضد دی.

اکبر (لوی) کفر په پنځه ډوله دی:

۱. **د دروغ ګڼلو کفر:** د الله تعالی انبیاوو ته د دروغجنو نسبت کول کفر دی. هر څوك چې د الله تعالی انبیاء، په هغه څه کې چې د الله تعالی له لوري یې راوړي دي، دروغجن وګڼي هغه کافر شو، ځکه الله تعالی فرمایلي دي: ﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِلْكَافِرِينَ﴾ (العنکبوت: ٦٨) **ژباړه:** له هغه چا نه به غټ ظالم څوك وي چې پر الله ﷻ باندې دروغ وتړي یا حق ته د دروغو نسبت وکړي چې کله هغه ته راوړل کېږي. آیا د دغسې کافرانو استوګنځی دوزخ نه دی؟

۲. **د انکار او ځان لوړ ګڼلو کفر:** دا په دې ډول چې د رسول په رښتینوالي پوهېږي او په دې باندې یې یقین وي چې دغه رسول د الله تعالی له لوري په حقه سره راغلی دی، خو بیا هم د عناد او تکبر له امله د هغه اوامرو ته غاړه نه ږدي. الله تعالی فرمایلي دي: ﴿وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ أَبَى وَاسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكَافِرِينَ﴾ (**البقرة: ٣٤**) **ژباړه:** او کله چې موږ پرښتو ته امر وکړ چې د آدم په وړاندې سرونه په سجده ښکته کړئ، نو ټولو سرونه ښکته کړل، خو ابلیس انکار وکړ هغه د خپلې لویۍ په غرور کې اخته او د کافرانو له ډلې څخه شو.

۳. **شك، تردید او د رسول ﷺ په صدق د یقین نه کولو کفر:** دې کفر ته د ظن او ګومان کفر هم ویل کېږي، ځکه الله تعالی فرمایلي دي: ﴿وَدَخَلَ جَنَّتَهُ وَهُوَ ظَالِمٌ لِنَفْسِهِ قَالَ مَا أَظُنُّ أَنْ تَبِيدَ هَذِهِ أَبَدًا ۞ وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً وَلَئِنْ رُدِدْتُ إِلَى رَبِّي لَأَجِدَنَّ خَيْرًا مِنْهَا مُنْقَلَبًا ۞ قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَكَفَرْتَ بِالَّذِي خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ سَوَّاكَ رَجُلًا ۞ لَكِنَّا هُوَ اللَّهُ رَبِّي وَلَا أُشْرِكُ بِرَبِّي أَحَدًا﴾ [الکهف: ٣٥ - ٣٨] **ژباړه:** بیا هغه خپل باغ ته ننوت او د خپل نفس په حق کې تیری کوونکی شو، ویې ویل ( زه دا نه ګڼم چې دغه شتمني او باغ به یو وخت فنا شي او زما باور نشته چې د قیامت ساعت به راشي بیا هم که کله د خپل رب حضور ته زما ورګرځېدل شول، نو هرو مرو به له دې نه هم زیات شاندار ځای ومومم، د هغه ګاونډي په خبرو اترو کې هغه ته وویل: آیا ته په هغه ذات کافر کېږې چې هغه ته له خاورې او بیا له نطفې څخه پیدا کړې او ته یې یو بشپړ سړی جوړ کړې؟ پاتې شوم زه، نو زما رب خو هماغه الله ﷻ دی او زه له خپل رب سره هېڅوك نه شریکوم.

٤. **د اعراض او مخ اړولو کفر:** له دې څخه مراد دا دی چې له دین څخه مخ واړوي، يعنې نه نبوي لاربښوونې اوري، نه په زړه كه څه التفات ورته كوي او نه ځان ورباندې پوهوي، څكه الله تعالى فرمايلي دي: ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا عَمَّا أُنْذِرُوا مُعْرِضُونَ﴾ (الأحقاف: ٣) **ژباړه:** خو دغه كافران له هغه حقيقت څخه مخ اړوونكي دي چې دوى ته د هغه اخطار وركړ شوى دى.

٥. **د نفاق كفر:** له نفاق څخه دلته مراد نفاق په عقيده كې دى. په دې ډول چې په ظاهر كې خلكو ته ايمان ښكاره كوي او په باطن كې يې عقيده د كفر وي، څكه الله تعالى فرمايلي دي: ﴿ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا فَطُبِعَ عَلَى قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ ﴾ (المنافقون: ٣) **ژباړه:** دا هر څه له دې امله دي چې دوى ايمان راوړ بيا كافر شول له دې امله د دوى پر زړونو مهر ولګول شو اوس دوى په هېڅ نه پوهېږي.

**د نفاق ډولونه**

نفاق په دوه ډوله دى

أ. **عقيدوي نفاق:** دې نفاق ته ستر كفر ويل كېږي او له اسلام څخه د وتلو لامل دى. دا نفاق په شپږ ډوله دى: د رسول تكذيب، يا د ځينو هغو شيانو تكذيب چې رسول ﷺ راوړي وي، له رسول ﷺ سره كينه كول، يا له هغو شيانو سره كينه كول چې رسول ﷺ راوړي وي. د رسول ﷺ د دين په ضعيفه كېدلو باندې خوشې ښكاره كول، يا د رسول ﷺ له دين سره د مرستې بد ګڼل.

ب. **عملي نفاق:** دې نفاق ته اصغر كفر هم ويل كېږي. په دې باندې انسان د اسلام له دين څخه نه وځي خو بيا هم لويه ګناه ده، چې ځينې يې نبي كريم ﷺ په دې حديث كې ذكر كړي دي: «أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْ نِفَاقٍ حَتَّى يَدَعَهَا إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ»[1] **ژباړه:** څلور شيان دي چې كه په چا كې دا ټول پيدا شول، نو سوچه منافق شو او كه په چا كې له دې څلورو شيانو څخه يو پيدا شو، نو په هغه كې د نفاق له عادتونو څخه يو عادت پيدا شو، تر څو چې پرې اېښى يې نه وي، كله چې

١ - متفق عليه

خبرې کوي، نو دروغ وايي، کله چې تړون وکړي، بيا په هغې کې غدر کوي، کله چې وعده وکړي، نو وفا وربانديې نه کوي او کله چې شخړه کوي، نو کنځل کوي.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د اکبر کفر د ډولونو لپاره مثالونه بيان کړي.

**د ستر کفر حکم**

د دې کفر خاوند کافر بلل کېږي له اسلام څخه وتلی، د تل لپاره به په دوزخ کې وي او د قيامت په ورځ د هېڅ شفاعت کوونکي شفاعت د ده په حق کې نه قبلېږي.




۱. کفر تعريف کړئ.
۲. د کفر ډولونه کوم دي؟
۳. لوی کفر په څو ډوله دی؟
٤. نفاق په څو ډوله دی؟
۵. ايا عملي نفاق له اسلام څخه د وتلو لامل دی؟
٦. د ستر کفر حکم بيان کړئ.

نهم لوست

# اصغر کفر

په مخکني لوست کې مو د اکبر کفر په اړه معلومات تر لاسه کړل. په دې لوست کې به د اصغر کفر د تعریف، ډولونو او حکم په اړه معلومات تر لاسه کړو.

## د اصغر کفر تعریف

دا هغه ګناهونه دي چې شارع د زجر او تهدید له امله ورته د کفر نسبت کړی دی، خو د اکبر کفر (لوی کفر) حد ته نه دي رسېدلي او له اصل ایمان سره ضد او منافي نه دي، خو ایمان ضعیفوي. که چېرې د دې ګناهونو خاوند توبه ونه باسې، نو د الله تعالی په مشیت کې دی. که خوښه یې شوه عذاب ورکوي، خو د ابد لپاره په دوزخ کې نه پاتې کېږي او که خوښه یې شوه عفوه ورته کوي.

## د اصغر کفر ډولونه

د اصغر کفر (کوچني کفر) ډولونه ډېر زیات دي، خو په لنډ ډول ویلای شو: هره هغه ګناه چې په شرعي نصوصو کې ورته د کفر نسبت شوی وي او د اکبر کفر (لوی کفر) او اکبر شرک حد ته نه وي، رسېدلې اصغر کفر (کوچنی کفر) ورته ویل کېږي.

## د اصغر کفر مثالونه

په یو حدیث شریف کې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: «سِبَابُ الْمُسْلِمِ فُسُوقٌ وَقِتَالُهُ كُفْرٌ»[١] **ژباړه:** مسلمان ته کنځل کول فسق او وژل یې کفر دی. همدارنګه په یو بل حدیث شریف کې، کله چې نبي کریم ﷺ په حجة الوداع کې خلکو ته نصیحت کولو، ویې فرمایل: «لاَ تَرْجِعُوا بَعْدِى كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ»[٢] **ژباړه:** له ما څخه وروسته تاسو مه کافر کېږئ، چې ځیني له تاسو څخه د ځینو نورو غاړې وهي. په یو بل حدیث

١ - صحیح مسلم - (١ / ٥٧)

٢ - صحیح مسلم - (١ / ٥٨)

شریف کې رسول اللهﷺ فرمایلي دي: «اثْنَتَانِ فِي النَّاسِ هُمَا بِهِمْ كُفْرٌ الطَّعْنُ فِي النَّسَبِ وَالنِّيَاحَةُ عَلَى الْمَيِّتِ»[1] **ژباړه:** په خلکو کې دوه عادتونه شته چې هغه کفر دی، یو نسب ته طعن (نسب بدلول) او بل په مړي باندې په چیغو ژړا کول.

## د دې ډول کفر حکم

د دې ډول کفر خاوند ته نه د کافر نسبت کېږي او نه له اسلام څخه وځي، خو شارع یوازې د زجر او تهدید په اساس ورته د کفر نسبت کړی دی.

**فعالیت:**

زده کوونکي دې په خپلو منځونو کې د اصغر کفر د تعریف او ډولونو په اړه یو له بل سره مباحثه وکړي.




۱. اصغر کفر تعریف کړئ.
۲. د اصغر کفر څو مثالونه ذکر کړئ.
۳. د اصغر کفر حکم بیان کړئ.

---

۱ - صحیح مسلم - (۱ / ۵۸)

# بدعت

شیطان د انسان د گمراهی هڅه کوي، فاسقان په بې دینی بې لارې کوي او دینداران په دین کې افراط او د دین له پولو څخه تېریدو ته هڅوي، په دې توګه چې په دین کې نوې لارې چارې راپیدا کړي. په دین ناپوهه خلک بیا هغه د دین برخه ګڼي او د الله تعالی د اطاعت په موخه د الله تعالی په معصیت کې ډوب وي. که چېرې بیا دغه بدعت په عقیده کې را منځته شي نو د ایمان له نواقضو څخه ګڼل کېږي او د انسان ایمان له منځه وړي.

په دې لوست کې به بدعت وپېژنئ او د هغه د ناروا توب دلایل به له قرآن او سنتو څخه زده کړئ.

**د بدعت تعریف**

بدعت د ژبې له مخې نوي ایجادولو ته وایي او همدا راز نوې پیدا کړی شوي څیز ته هم ویل کېږي.

په شرعي اصطلاح کې په دین کې نوې چارې ایجادول چې د رسول اللهﷺ په زمانه کې اړتیا ورته وه او څه مانع هم شتون نه درلوده، خو له دې سره سره شریعت امر نه وي ور باندې کړی. د داسې چارو ایجادولو ته بدعت ویل کېږي.

**د تعریف شرح**

په تعریف کې درې مطلبونه بیان شوي دي:

۱. بدعت په دین کې نوې چارې ایجادول دي، چې قرآن او سنت د هغو غوښتنه نه وي کړې، نو بدعت په دین کې رامنځته کېږي، په دنیوي چارو کې بدعت نه وي.

د دیني او دنیوي چارو تر منځ (په دې ځای کې) توپیر په دې سره کېږي، چې دیني چارې د اجر د طلب لپاره وي او دنیوي چارې خپل خپل اهداف لري.

۲. دې نویو چارو ته لکه چې اوس اړتیا ده، هغو ته به د رسول اللهﷺ په زمانه کې هم اړتیا وه او همدومره اړتیا بس ده چې دا نوی عمل یو دیني کار وګڼل شي، ځکه دیني کار باید پلی شوی وای.

رسول اللهﷺ دین پوره را رسولی او ټول یې په عمل کې پلی کړی دی، خو هغه چارې چې د دین خدمت پرې کېږي، د رسول اللهﷺ په زمانه کې اړتیا ورته نه وه او اوس یې ګټه ښکاره ده. د داسې چارو ایجادول بدعت نه دی، لکه د صرف او نحو د علومو زده کول، ځکه د هغه مبارک په زمانه کې مسلمانان په قرآن او سنتو د صرف او نحو له کارولو پرته ښه پوهېدل، او اوس په عربو او عجمو کې هغه پخوانی سلیقه پاتې نه ده، نو د قرآن او سنتو د پوهې لپاره د ژبې د علومو زده کړه اړینه ده.

همدا راز د مدرسو او پوهنتونونو جوړول او د دین د پیاوړتیا او پایښت لپاره پراخه دولتي تشکیلات رامینځ ته کول، منظم قوانین جوړول او محاکم ایجادول دا ټول بدعت نه دي، ځکه دا د اوسني زماني اړتیا ده چې د رسول اللهﷺ په زمانه کې په دومره پراخه کچه ورته اړتیا نه وه.

۳. د رسول اللهﷺ په زمانه کې به د دې نويو چارو د کارولو په مخ کې خنډ نه وو او که په هغه زمانه کې يې په مخ کې خنډ وو، کارول يې ممکن نه وو، نو بيا يې د ګټې او اغېز د شتون په صورت کې کارول بدعت نه ګڼل کېږي، خو په دې شرط چې د دين له کوم بل اصل او حکم سره په ټکر کې نه وي. لکه له نوې تکنالوژۍ څخه د دين په ساتلو او خپرولو کې کار اخيستل، په جهاد کې د نويو وسلو کارول او په دعوت کې له راديو، تلويزيون، انټرنېټ او د مطبعو له مشينونو څخه کار اخيستل. د دې ټولو څيزونو کارول د رسول اللهﷺ په زمانه کې د هغوی د نشتوالي له کبله ممکن نه وو.

**فعاليت**

۱. زده کوونکي دې د ديني او دنيوي چارو لپاره په خپل وار مثالونه بيان کړي او په دين کې د نويو لارو د جوړولو ريښتيني يا فرضي بېلګې دې وښيي.

۲. د دين ټينګول، امنيت راوستل، د ښوونې او روزنې، روغتيا او عدالت په ډګرونو کې هڅې عادتونه دي، که عبادتونه؟ د دين د اقامت لپاره دولتي تشکيلات ولې بدعت نه ګڼل کېږي، سره له دې چې د رسول اللهﷺ په زمانه کې به دې پراخه کچه تشکيلات او ادارې نه وې؟ په دې هکله بحث وکړئ.

**په عقيده کې بدعت**

علماوو په دې اتفاق کړی چې په عقيده کې بدعت حرام دی ځينې عقيدوي بدعتونه آن کفر ته رسېږي، چې د دين له ښکاره حکم څخه پکې انکار راشي او ټولو ديني علماوو هغه صريح کفر ګڼلی وي. لکه د مشرکانو دا قول چې قرآن حکايت ورڅخه کوي: ﴿وَقَالُوا مَا فِي بُطُونِ هَذِهِ الْأَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلَى أَزْوَاجِنَا﴾ [الأنعام:۱۳۹] او دوی وايي: څه چې د دې څارويو په ګېډو کې دي، يوازې زموږ د نارينه وو لپاره دي او زموږ پر ښځو حرام کړی شوي دي.

**د بدعت د ناروا توب دليلونه**

ډېر نقلي او عقلي دليلونه د بدعت په ناروا توب دلالت کوي چې موږ يې دلته له قرآن او سنتو څخه په ځينو مهمو او صريح دلايلو بسنه کوو.

**قرآن کريم:** الله تعالی فرمايي: ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾ [المائدة: ۳] **ژباړه:** نن ورځ مې ستاسو لپاره ستاسو دين کامل کړ، خپل نعمت مې پوره درکړ، او اسلام مې د دين په توګه درته غوره کړ.

څوک چې نوې چارې په دين کې پيدا کوي او هغه له دين څخه ګڼي، دی د رسول اللهﷺ په لاس راوړل شوی دين پوره نه ګڼي. د ده عمل دا معنا لري چې د دين

ځینې برخې هغه مبارك نه دي پوره کړي او هغه یې دپوره کیدو لپاره دې مبتدع ته پرې ایښې دي. نو دی د دې آیت په مدلول یا نه پوهیږي او یا ورڅخه انکار کوي، ځکه الله تعالی دین پوره ګڼلی او دی په هغه کې نورې چارې را پیدا کوي.

**حدیث:** رسول اللهﷺ فرمایلي: «أُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللَّهِ وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ لِوُلاَةِ الأَمْرِ ، وَإِنْ كَانَ عَبْدًا حَبَشِيًّا ، فَإِنَّهُ مَنْ يَعِشْ مِنْكُمْ بَعْدِي فَسَيَرَى اخْتِلاَفًا كَثِيرًا ، فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ ، تَمَسَّكُوا بِهَا ، وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ ، وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الأُمُورِ. فَإِنَّ كُل مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ ، وَكُل بِدْعَةٍ ضَلاَلَةٌ»[١]

**ژباړه:** زه تاسو ته له الله تعالی څخه په تقوی او وېره او د چارواکو خبرو ته په غوږ نیولو او درناوی وصیت کوم، که څه هم هغه یو حبشي غلام وي ځوك چې په تاسو کې ژوندی پاتې شي هرو مرو به زیات اختلاف ویني، نو په تاسو زما د سنتو او زما د راشدو خلفاوو (لارښودل شویو ځای ناستو) د لارو پیروي لازمه ده دا طریقې کلکې ونیسئ او په غاښونو یې کلکې کړئ، له نویو کارونو څخه ځان وساتئ، ځکه هره نوې چاره بدعت ده او هر بدعت لار ورکې ده.

په یو بل حدیث کې عایشې رضي الله تعالی عنها له رسول اللهﷺ څخه روایت کړی چې هغه مبارك وفرمایل: «مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ»[٢] چا چې زموږ په دې کار (دین) کې نوي څه راپیدا کړل، نو هغه رد دي.




١. بدعت تعریف کړئ؟
٢. د بدعت له تعریف څخه څو مطلبونه په ډاګه کېږي؟
٣. په عقیده کې بدعت څه ته وایي؟
٤. د قرآن او سنتو له مخې د بدعت د نارواتوب دلیلونه بیان کړئ.



**کورنی دنده:**

زده کوونکي دې د بدعت په اړه یوه مقاله ولیکي چې له لسو کرښو کمه نه وي.

---

١- رواه احمد و أبوداود.
٢ - متفق علیه

# د صحابه کرامو مقام

**۱. د صحابه وو تعريف**

صحابه او اصحاب د صحابي جمع ده او ملګري ته ويل کيږي.

په اصطلاح کې صحابي هر هغه چاته ويل کيږي چې پيغمبرﷺ يې ليدلی وي، په هغـه يـې ايمان راوړی وي او د ايمان په حالت کې وفات شوی وي.

**۲. د صحابه کرامو بهتري او غوره والی**

الله تعالی د قرآن په ګڼو آياتو کې د صحابه کرامو فـضيلت، مقـام او منزلـت سـتايلی چـې موږ د بيلګې په توګه لاندې آيتونه لولو:

**أ. الله تعالی له صحابه وو څخه خوښ او راضي وو او صحابه له الله ﷻ څخه**

الله تعالی فرمايي: ﴿وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾. [التوبة ۱۰۰]

**ژباړه:** هغه مهاجرين او انصار چې هغوی تر ټولو دمخه د ايمان بلنې ته په لبيك ويلـو کـې وړاندې شول، دغه راز هغه کسان چې وروسته له نيکـی او ريـښتينولی سـره پـه هغـو پـسې راغلل، الله ﷻ له هغو نه خوښ او هغوی له الله ﷻ نه خوښ شول الله ﷻ د هغو لپاره داسـې باغونه تيار کړي دي چې تر هغو لاندې بـه ويـالې بهيـږي او هغـوی بـه پکـې د تـل لپـاره اوسيږي. همدا ډير لوی برياليتوب دی.

**ب. په غوره خويونو دصحابه وو توصيفول**

الله پاک فرمايي: ﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ﴾ [الفتح: ۲۹]

**ژباړه:** محمدﷺ د الله رسول دی او کوم کـسان چـې لـه هغـه سـره ملګـري دي هغـوی پـر کافرانو سخت او په خپلو منځو کې خواخوږي دي. ته چې کله هغوی ګـورې پـه رکـوع او سجده او د الله ﷻ د فضل او د هغه د رضا پـه طلـب کـې يـې بوخـت مـومې، د سـجدو نښې نښانې د هغو پر تنديو موجودې دي چې په هغوسره پيژندل کيـږي.

**ج. د امت اجماع**

د پورتنيو قرآني آيتونو او د زياتو نبوي احاديثو پر بنسټ چې د صحابه وو پـه لـوړ شان دلالت کوي، ټول اسلامي امت د صحابه کرامو پر عدالت او تقوا اجماع کړې ده او ويلي يې دي: (**الصحابة کلهم عدول**). صحابه کرام ټول په حق او انصاف ولاړ او د تقـوا څښتنان

دي. د هغوی تر منځ پیښې شوې مشاجرې او اختلافونه اجتهادي وو او هیڅ یو لوري ته پړه او ملامتیا نه شي راجع کیدای. که کومه ګناه ترې شوې هم وي، توبه یې ایستلې او الله پاک ورته ښښنه کړې ده. الله تعالی فرمايي: ﴿لَقَدْ تَابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِنْ بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٍ مِنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ إِنَّهُ بِهِمْ رَءُوفٌ رَحِيمٌ﴾ [التوبة:۱۱۷]

**ژباړه:** الله ﷻ، پیغمبر او هغو مهاجرينو او انصارو ته ښښنه وکړه چې هغوی په ډېر تنګ وخت کې د پیغمبر ملګرتیا وکړه. که څه هم چې له هغو څخه د ځینو زړونه کوږوالي ته نیژدې شوي وو (خو کله چې هغوی د دې انحراف پیروي ونه کړه. بلکې د پیغمبر ملګرتیا یې وکړه) نو الله ﷻ هغوی معاف کړل. بېشکه چې الله ﷻ پر دوی مهربان او رحم کوونکی دی.

**۳. د صحابه وو سپېڅلتیا**

صحابه کرام هغه سپېڅلي خلک دي چې الله ﷻ له هغوی ټولو څخه د خپلې خوښۍ خرګندونه داسې کوي: ﴿لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾ [الفتح: ۱۸]

**ژباړه:** الله ﷻ له مؤمنانو څخه راضي شو کله چې هغوی تر ونې لاندې له تاسره بیعت کاوه.

صحابه کرام د ډېر لوړ مقام څښتنان دي. صحابه کرام هغه خلک دي چې الله پاک د خپل پیغمبر او تر قیامته پورې د عام امت تر منځ د وساطت او ارتباط لپاره غوره کړي دي. چې له دوی پرته نه خو د قرآن فهم امت ته رسیدلای شو او نه د پیغمبر ﷺ تعلیمات او لارښوونې!

له همدې کبله د صحابه کرامو پرعدالت، صدق او تقوا باندې ایمان لرل د عقیدې برخه ګرځېدلې ده.

**فعالیت**

که صحابه کرام – خدای ﷻ مه کړه- مورږ بې اعتباره وګڼو، نو قرآن او سنت خو مورږ ته هغوی را رسولي، د دې دواړو به بیا څه حال وي؟ او د اسلام به بیا څه حال وي؟

**٤. له صحابه وو سره مینه**

پیغمبر ﷺ په خپلو ویناوو کې مسلمانانو ته لارښوونه کړې ده چې د صحابه وو سره مینه وساتي، او هغوی سره له دښمنۍ څخه ځانونه وژغوري، ځکه چې د صحابه کرامو ډله د ځمکې پر مخ تر ټولو غوره ډله ده، او د هغوی سره مینه ساتل د پوره ایمان نښه ده. له

هغوی سره مینه، محبت او د هغوی قدر او احترام د پېغمبرﷺ او پر هغه د نازل شوي شریعت سره مینه، محبت او د هغو قدر او احترام دی!

ځکه نو پېغمبرﷺ عام امت ته په خطاب کې د هغوی پام او توجه د صحابه کرامو لور ته را اړولې ده. پېغمبرﷺ فرمایلي دي:«لاَ تَسُبُّوا أَصْحَابِي فَوَالَّذِى نَفْسِى بِيَدِهِ لَوْ أَنْفَقَ أَحَدُكُمْ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا بَلَغَ مُدَّ أَحَدِهِمْ وَلاَ نَصِيفَهُ »[1].

**ژباړه**: زما صحابه مه کنځئ. زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما روح د هغه په واك کې دی چې که چیرې ستاسې څخه یوکس د احد د غره په اندازه سره زر خیرات کړي نو د هغوی یو موټي خیرات ته نه رسيږي ، او نه يې نیم موټي خیرات ته رسيږي. په بل حدیث شریف کې پېغمبرﷺ فرمایلي دي: «اللَّهَ اللَّهَ فِي أَصْحَابِي اللَّهَ اللَّهَ فِي أَصْحَابِي لَا تَتَّخِذُوهُمْ غَرَضًا بَعْدِي فَمَنْ أَحَبَّهُمْ فَبِحُبِّي أَحَبَّهُمْ وَمَنْ أَبْغَضَهُمْ فَبِبُغْضِي أَبْغَضَهُمْ وَمَنْ آذَاهُمْ فَقَدْ آذَانِي وَمَنْ آذَانِي فَقَدْ آذَى اللَّهَ وَمَنْ آذَى اللَّهَ يُوشِكُ أَنْ يَأْخُذَه»[2].

**ژباړه**: زما د صحابه وو په اړه له الله ﷻ ووېرېږئ، له الله ﷻ ووېرېږئ، هغوی د خپلو ناوړه ویناوو نښه مه ګرځوئ، که څوك له هغوی سره مینه محبت لري نو زما د مینې او محبت له کبله يې ورسره لري او که څوك له هغوی سره کرکه، نفرت او دښمني لري نو له ماسره د کرکې، نفرت او دښمنۍ له کبله يې ورسره لري. او که څوك هغوی ته ضرر او تکلیف رسوي، نو یقینا چې ماته تکلیف او ضرر رسوي، او څوك چې ماته تکلیف او ضرر رسوي، نو یقیناً چې الله پاك ته تکلیف او ضرر رسوي. ( له ځانه يې خپه کوي) او څوك چې الله پاك ته تکلیف او ضرر رسوي ( خپه کوي يې) نو نژدې ده چې الله پاك به يې را ونیسي.

**فعالیت**

په پورتني حدیث کې پېغمبرﷺ څو مهم ټکي ذکر کړي دي، د هغو په هکله یو یو په نوبت خبرې اترې وکړئ:

١. د صحابه کرامو په باره کې له الله ﷻ څخه ووېرېږئ.
٢. صحابه کرام د خپلو ناوړه ویناوو نښه مه ګرځوئ.
٣. له اصحاب کرامو سره مینه کول په حقیقت کې د الله ﷻ د رسول سره مینه ده.
٤. له صحابه وو سره دښمني په حقیقت کې له پېغمبرﷺ سره دښمني ده.

---

١- سنن أبي داود
٢- الترمذي

### ۵. د صحابه وو سره بغض ساتل منافقت دی

لکه څرنګه چې له صحابه وو سره مینه د ایمان نښه ده، همدا شان له صحابه وو سره بغض ساتل منافقت او سرکشي ده. امام طحاوي لیکلي دي: (**وَبُغْضُهُم كُفْرٌ ونِفَاقٌ وطُغْيَانٌ**). له صحابه وو سره بغض یاکفر دی، یا نفاق، یا سرکشي او بغاوت دی.

دا په دې معنا چې که څیرې له صحابه وو سره بغض د دین او یا بې ځایه غوسې له امله وو، نو بیا دا لوی کفر دی چې مسلمان پرې کافر کیږي. که څیرې د صحابه وو بد ګڼل او ورسره کینه ساتل د دنیایي امورو په خاطر وي نو دا کار بیا فسق دی.

له صحابه وو سره بغض ځکه نفاق دی چې پېغمبرﷺ فرمایلي: «**الْأَنْصَارُ لَا يُحِبُّهُمْ إِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا يُبْغِضُهُمْ إِلَّا مُنَافِقٌ**»[1]. **ژباړه:** له انصارو سره مینه او محبت نه کوي مګر مؤمن او له دوی سره بغض اوکینه نه کوي مګر منافق.

بل دا چې صحابه ددین ساتونکي، ددین روزونکي، د کفر په مقابل کې جهاد کوونکي وو بغض ساتل ځکه منافقت دی چې دا کار د هغه وخت د منافقینو خصلت اوعادت وو چې صحابه به یې بد ګڼل.




۱. اصحاب تعریف کړئ.
۲. د اصحابو د غوره والي په اړه دوه نقلي دلایل ذکر کړئ.
۳. له صحابه وو سره مینه کول څه حکم لري؟
٤. له صحابه وو سره بغض او کینه کول څه حکم لري؟


**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د صحابه وو په اړه یوه مقاله ولیکي چې له لسو کرښو کمه نه وي.

---

۱- صحیح البخاري

# د صحيح او حسن حديثونو پېژندل

احاديث د روايت له مخې ډېر ډولونه او مختلفې مرتبې لري چې د هغې لـه جملې څخه يو صحيح ، بل حسن حديثونه دي نو اړينـه ده چې د صـحيح اوحـسن حـديثونو تعريـف، اوتوپير وپېژنو.

### ۱ـ صحيح حديث

**د صحيح حديث تعريف**

په عربي لغت کې صحيح دمريض ضد ته وايي.

او د محدثينو په اصطلاح کې صحيح حديث: هغه حـديث دی چې راويـان يـې عـادلان، د کـره ضبط او حافظې خاوندان، سند يې متصل، او د هر ډول علت، او شذوذ څخه خالي وي.

**د تعريف شرحه**

د صحيح حديث په اصطلاحي تعريف کې د پنځو شرطونو يادونـه شـوې چـې وضـاحت يې په لاندې ډول دی:

۱ـ د راويانو عدالت: دا په دې معنا چې د حديث ټول راويان به مسلمانان او عاقلان، بالغـان وي، او د هر قسم فسق، او د مروت خلاف کارونو او خصلتونو څخه به پاک وي.

۲ـ راويان به يې ضابطين او متقنين وي: معنا دا چې راويان به يې دداسې حـافظې خاونـدان وي چې احاديث به يې داسې کره ياد وي چې کله يې د لوستلو اړتيا پيدا شې بې له کـوم زيادت يانقصان څخه يې وړاندې کړای شي.

۳ـ د سند اتصال: هغه داسې چې ددې حديث هر راوي به حـديث د مخکينـي راوي څخه اورېدلی وي ،يا به يې په هغه لوستلی وي، اويا به له مخکيني راوي څخه د روايـت کولـو اجازه ولري.

۴ـ د علت څخه پاکوالی: هغه داسې چې په حديث کې به کوم داسې پټ عيب اوعلت نـه وي([1]) چې د حديث صحت تر سوال لاندې راولي.

---

۱ـــ په سند کې دعلت څخه دپاکوالي نه مراد دا دی چې په سند کې کومه داسې پټه انقطاع نه وي موجوده چې په ظاهرکې ورڅخه سـند پاک ښکاري، ځکه که چيرې په سند کې انقطاع موجوده وي نو بيا داسې حديث ته منقطع ويل کيږي نه صحيح حديث. ددې مثـال امـام

۵ـ له شاذ والي څخه پاکوالی: یعنې حدیث به شاذ نه وي. شاذ هغه حدیث تـه وایـي چې مقبول راوي د خپلې مرتبې څخه د لوړې مرتبې د راوي پرخلاف روایت کړی وي.

**د صحیح حدیث مثال**

«قال الإمام البخاري: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ –رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ– عَنْ النَّبِيِّ –صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ– قَالَ: ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ وَجَدَ حَلَاوَةَ الْإِيمَانِ مَنْ كَانَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا وَمَنْ أَحَبَّ عَبْدًا لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلَّهِ.....»[1]

**ژباړه:** امام بخاری رحمه الله تعالی وایي چې مونږ تـه حـدیث بیـان کـړی دی سـلیمان بـن حـرب، هغه وایي چې مونږ ته حـدیث بیـان کـړی شـعبه، شـعبه لـه قتـادة، او قتـادة لـه انـس بـن مالـكﷺ څخه روایت کوي انسﷺ وایـي چې پیغمبـرﷺ فرمـایلی دي: (درې خویونـه داسـې دي چې پـه چاکې وي د ایمان په خونـد بـه پوهـه شـي:چاتـه چـې اللهﷻ او د هغـه رسـولﷺ تـر هـر چـا ډېـر محبوب وي، بل هغه څوك چې د یو شخص سره د اللهﷻ د رضـامندۍ لپـاره مینـه کـوي، او بـل هغه څوك چې کفر ته اوړېدل ورته دومره بـد ښـکاري پـس لـه هغـې چـې اللهﷻ ورتـه د کفـر څخه خلاصی ورکړ، لکه څرنگه چې په اورکې واچول شي.)

دا حـدیث ځکـه صـحیح دی چـې راویـان یـې ټـول عـادلان، دکـره حـافظې خاونـدان، سـند یـې متصل، او هیڅ ډول علت او شذوذ په کې نشته.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د پورتني حدیث د راویانو نومونه واخلي.

**۲ـ حسن حدیث**

**دحسن حدیث تعریف**

په عربي لغت کې حسن د قبیح ضد ته وایي.

---

ابن صلاح په لاندې حدیث کې داسې شرحه کوي:– عن عبد الرازق عن سفیان الثوري عن أبی إسحاق عن زید بن یثیع عن حذیفة قال: قال رسول الله صلی الله علیه و سلم : (إن ولیتموها أبا بکر فقوي أمین . . ) ).

که څېرې یو محدث د دې حدیث د سند ظاهر ته نظر وکړي، نو ورته متصل ښکاري حال دا چې پـه دې سـند کـې دوه ځایـه انقطـاع موجوده ده: لومړی دا چې خپله امام عبدالرزاق دا حدیث له امام ثوري څخه نه دی اوریدلی، بلکـه ده دا حـدیث د النعمـان بـن ابـي شـیبه الجندي څخه اوریدلی دی. دوهم دا چې امام ثوری هم دا حدیث د ابو اسحاق څخه په خپله نه دی اورېـدلی، بلکـه ده دا حـدیث لـه امـام شریك څخه اوریدلی او بیا امام شریك له امام ابواسحاق څخه اوریدلی دی، نوپه سند کـې پټـه انقطـاع پرتـه ده. (ابـن الـصلاح – / ۳۳ ) مقدمة

۱ – صحیح البخاري

او د محدثينو په اصطلاح کې حسن: هغه حديث ته ويل کېږي چې راويان يې عادلان، مګر د کره ضبط او حافظې خاوندان نه وي، سند يې متصل د هر ډول علت اوشذوذ څخه پاک وي.

**د حسن حديث شرطونه**

د حسن حديث له تعريف څخه څلور شرطونه معلومېږي

۱ـ د راويانو عدالت.

۲ـ د سند اتصال.

۳ـ د شاذ والي څخه پاکوالی.

۴ـ د علت څخه پاکوالی.

**د صحيح او حسن حديثونو ترمنځ توپير**

که چېرې د صحيح، او حسن حديثونو تعريف او شرطونو ته ځير شو نو کوم توپيرنه لرې، يوازې د حسن حديث توپير له صحيح سره په دې کې دی چې دحسن حديث په راويانو کې يوکس د کره او قوي حافظې خاوند نه وي.

**د حسن حديث مثال**

**قال الامام احمد:** «حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ –صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ– يَقُولُ:(وَيْلٌ لِلَّذِي يُحَدِّثُ الْقَوْمَ ثُمَّ يَكْذِبُ لِيُضْحِكَهُمْ وَيْلٌ لَهُ وَوَيْلٌ لَهُ». [1]

**ژباړه:** (امام احمد رحمة الله تعالی وايي چې مونږ ته امام عبدالرزاق حديث بيان کړی، عبدالرزاق وايي چې مونږ ته معمر حديث بيان کړی، هغه له بهز بن حکيم څخه روايت کوي، هغه له خپل پلار حکيم چې بيا يې له نيکه څخه روايت کوي د بهز نيکه وايي چې ما له پيغمبرﷺ څخه اوريدلي چې ويل يې: هلاکت دې وي هغه شخص ته چې خلکو سره کله خبرې کوي، نو ددې لپاره ورته دروغ وايي چې هغوی وخندوي، هلاک دې شي، او هلاک دې شي داسې شخص.)

۱ - مسند أحمد

د دې حديث سند متصل، د شاذ والي او علت څخه خالي دی، راويان يې عادلان دي، مگر يوازې د بهز بن حکيم راوي په ضبط او حافظه کې کمزوري وه، له دې امله دا حديث حسن حديث بلل کېږي.

**د صحيح او حسن حديثونو حکم**

صحيح ، او حسن حديثونه دواړه شرعي دلايل دي او عمل پرې واجب دی.




۱ـ صحيح حديث تعريف کړئ.

۲ـ د صحيح حديث شرطونه څو دي؟

۳ـ د صحيح او حسن حديثونو ترمنځ څه توپير دی واضح يې کړئ؟

۴ـ د صحيح او حسن حديثونو حکمونه ووایاست.




د صحيح او حسن حديثونو تعريفونه په يادو زده کړئ.

# ضعیف حدیث

د اسلام د دین له ځانګړتیاوو څخه یوه دا ده چې هر حکم یې پرسند ولاړ دی، هیڅ داسې وینا او عمل پکې نشته چې پر دلیل ولاړ نه وي، که چیرې په کومه وینا کې چې پیغمبرته یې نسبت کیږي د کمزوري نښه لیدل کیږي او په روایت کې یې ستونزه وي، د دین علماوو داسې روایات پـه ګوتـه کړي دي، تـر څـو پـرې څـوك د صحت حکـم ونکړي.

حدیث ته د کمزوري نسبت له دې کبله کیږي چې د روایت په سلسله کې یې قوت نه وي، او ځینې داسې لاملونه یې ترڅنګ شتون لري چې پیغمبر ته یې په نسبت کولو کې خنډ واقع کیږي.

**د کمزوري حدیث تعریف:** هغه حدیث ته ویل کیږي چې په هغه کې د صحیح او حسن شرطونه نه وي[1].

**د تعریف شرحه:** له کمزوري حدیث څخه مراد هغه حدیث دی چې په سند کې یې انقطاع وي او یا داسې راوي پکې وي چې د اعتماد وړ نه وي، د بېلګې پـه توګـه لکـه پـه دیانت او ریښتونولی باندې یې اعتراض وي اویا حافظه یې کمزورې وي، لـدې املـه هغـه وینا اوکړنه چې نسبت یې پیغمبرته کیږي، د روایت په لړ کې یې ستونزې وي هغـه تـه کمزوري حدیث ویل کیږي.

د کمزوري حدیث مثال: (حَدَّثَنَا أَحْمَدُ قَالَ: حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ رُشَيْدٍ قَالَ: حَدَّثَنَا بَقِيَّةُ بْنُ الْوَلِيدِ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ يَحْيَى، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «احْتَرِسُوا مِنَ النَّاسِ بِسُوءِ الظَّنِّ»)[2].

**ژباړه:** په بد ګماني سره له خلکو څخه ځان وژغورئ.

---

۱- هغه شرطونه: د سند اتصال، د راویانو عدالت، د هغوی حافظه، د علت او شذوذ څخه پاکوالی.

۲ – د طبراني المعجم الأوسط ۱۸۹/۱، په روایت کې یې معاویه بن یحی دی هغه ضعیف دی. ابن حجر.

**د ضعیف حدیث حکم**

د کمزوري حدیث روایت او پرې عمل هغه مهال روا دی چې کمزوري یې ډېره زیاته نه وي، په فضایلو (ترغیب، او ترهیب) پورې اړه ولري، د اسلام عام اصل یې تایید کوي او له هغه سره هیڅ ډول ټکر ونلري.

**د ضعیف حدیث ګټه**

په فضایلو کې ضعیف حدیث چې ډېر ضعف ونلري، د دې وړ دی چې عمل پرې وشي، او همدا راز د دې حدیث په غوښتنه په عمل کولو سره د ثواب امید هم کیدای شي، که چیرې د دین له اصولو سره ټکر ونلري.




۱ – ضعیف حدیث تعریف کړئ.

۲ – په کومو شرطونو د ضعیف حدیث روایت صحیح دی؟

۳ – ضعیف حدیث څه ګټه لري؟ بیان یې کړئ.

# موضوع حديث

د پېغمبر وينا وحي ده او په اسلام کې دويم مأخذ دی، لدې کبله د پېغمبرﷺ په احاديثو کې علماوو پوره زيار ايستلی او دقت يې کړی دی، هغه صحيح احاديث چې له پېغمبر څخه يې روايت شوی دی، له جوړو شوو خبرو څخه لرې کړي او پدې اړه د دين علماء بريالي شوي دي چې په دلايلو سره يې موضوعي احاديث د صحيحو احاديثو له لړۍ نه لرې کړي.

**د موضوع حديث تعريف:** هغه له ځانه جوړ شوي حديث ته ويل کېږي چې پرته له کوم اساسه يې پېغمبرﷺ ته نسبت شوی وي.

### د تعريف شرحه

له پورتني تعريف څخه دا څرګنده شوه چې موضوع حديث هغو خبرو او کړنوته ويل کېږي چې ځينو خلکو پرته له کوم سنده په پيغمبر پورې تړلي وي او هغه ته يې نسبت کړی وي، د تاريخ په اوږدو کې ځينې داسې دروغجن خلك وو، چې په رسول اللهﷺ پورې يې دروغ تړلي ، ځينو د خپل تعصبي نظر پیاوړي کولو، ځينو د ديندارۍ په نيت د ځينو اعمالو د فضايلو په بيان کې او ځينو نورو د فساد او دښمنۍ لپاره دا كار سرته رسولی دی.

### د موضوع حديث حكم

د موضوع حديث روايت او ورباندې عمل کول ناروا دي، ځکه چې د دې حديث بيانول په خپله ويونکي ته تاوان رسوي او هغه داسې چې کله څوك يو موضوع حديث بيانوي، هغه ته دروغجن ويل کېږي، لكه: څرنګه چې په حديث شريف کې راغلي دي: «مَنْ حَدَّثَ عَنِّي بِحَدِيثٍ وَهُوَ يَرَى أَنَّهُ كَذِبٌ فَهُوَ أَحَدُ الْكَاذِبِينَ.» (۱)

**ژباړه:** څوك چې زما ( پېغمبر) لخوا خلكو ته وينا كوي او هغه پوهېږي چې دا وينا دروغ ده (د پېغمبر حديث نه دی) دا کس په خپله يو له دروغ ويونکو څخه دی.

۱ – المعجم الكبير.

خو د موضوع حدیث د پېژندلو او د خلکو د پوهاوي لپاره که چېرې اړتیا لیدل کېږي بیانول یې جواز لري، ترڅو خلك پدې پوه شي چې دغه وینا حدیث نه، بلکې له ځانه جوړه شوې وینا ده.

**د موضوع حدیث پېژندنه**

موضوعي حدیث په لاندې توګه معلومېږي

۱ – کله چې وضعه کوونکی یې په خپله اعتراف وکړي چې دا حدیث ده جوړ کړی دی.

ب – داسې معنا ولري چې د وقوع امکان یې لرې برېښي، لکه د دوو متضادو شیانو یوځای کېدل.

ج – له هغو مسایلو سره مخالف واقع کېدل چې په دین کې خورا مهم ګڼل کېږي، لکه د اسلام له یو رکن څخه انکار کول.

**د وضعه شوي حدیث مثال**

– " الْفَقرُ فَخرِي وَبِهِ أَفتَخِرُ "[۱].

**ژباړه:** فقر زما وياړ دی، زه پرې وياړم.

**د وضعي اسباب**

له ځانه حدیث جوړول او بیا یې پیغمبرﷺ ته نسبت کول، یو شمېر لاملونه لري چې په لاندې توګه بیانېږي.

۱ – ځینې داسې خلك وو چې له ځانه یې عجیبه قیصې جوړولې، بیا به یې نسبت پیغمبرﷺ ته کاوه او خلکو ته به یې په مجالسو کې اورولې تر څو له دې لارې په خلکو کې شهرت پیدا کړي او د قدر وړ وګرځي.

۲ – د دین دښمنانو هم زیار ایسته چې له دې لارې په اسلام باندې طعن وارد کړي او خپلو شومو اهدافو ته د رسېدو په خاطر یې له ځانه حدیث جوړول او بیا یې پیغمبرﷺ ته نسبت کاوه.

۳ – ځینې داسې خلك وو چې د دې لپاره چې د وخت واکمنانو ته ځان نیږدې کړي د هغوی د خوشحالېدو لپاره یې خبرې جوړولې او بیا به یې د حدیث سرلیك ورکاوه.

۱ – ابن حجر وایي: دا موضوعي حدیث دی هیڅ اساس نه لري، همداراز امام صنعاني وایي: په دروغو جوړ شوی دی.

٤ – ځينې ډلو د خپلې تګ لارې د تاييد لپاره، احاديث جوړ کړل ترڅو وښيي چې د دوی تګ لاره په حقه ده او د اسلام له نظره ستونزه نه لري.

٥– ځينو په نفلي عباداتو کې د افراط کولو په نيت او د بې ځايه ديندارۍ له کبله د اعمالو په فضايلو کې حديثونه جوړول.

**د موضوع او ضعيف تر منځ توپير**

موضوعي حديث هغه بې بنسټه خبر دی چې په دروغو يې نسبت پېغمبرﷺ ته شوی وي په دين کې هيڅ حيثيت نلري آن تر دې چې وېل يې هم ګناه لري، که چېرې د پوهاوي لپاره نه وي.

او ضعيف حديث د څه لاملونو له کبله کمزوری ګڼل کېږي اوکه چيرې د دين له اصولو سره ټکر ونلري، د دې وړ دی چې په فضايلو کې پرې عمل وشي او همدا راز په نورو رواياتو سره د کمزورۍ له مرحلې څخه هم وتلای شي.




١ – موضوع حديث څه ته وايي؟ بيان يې کړئ.

٢ – په کومو لارو موضوعي حديث پېژندل کېږي؟

٣ – د موضوع حديث حکم ووايast.

٤ – آيا کمزوری حديث له موضوعي حديث سره توپير لري؟ واضح يې کړئ.

# د احادیثو مشهور کتابونه

**د احادیثو د کتابونو ډولونه**

د احادیثو کتابونه د ترتیب په اعتبار سره په دوه ډوله دي: پر بابونو مشتمل کتابونه او مسانید.

**۱ـ پر بابونو مشتمل کتابونه**

دا هغه کتابونه دي چې د پیغمبرﷺ احادیث په کې د بابونو او کتابونو په شکل کې راټول او په بیلا بیلو طریقو لیکل شوي دي:

اـ ځینې یې داسې دي چې په علم او دین پورې اړوند ټول بابونه یکې ځای پر ځای شوي دي، لکه: د تعلیم او تعلم برخه، د عقایدو برخه، فقهي احکام، زهد او تقوی، آداب او اخلاق، تفسیر، تاریخ او نبوي سیرت، پېښېدونکي فتنې، د صحابه وو مناقب، دغه ډول کتابونو ته جوامع ویل کیږي، لکه: د امام بخاري جامع، د امام مسلم جامع او د امام ترمذي جامع.

ب ـ ځینې یې داسې دي چې یوازې د فقهي کتابونو په ترتیب لیکل شوي او یوازې هغه احادیث په کې راټول شوي دي چې په فقهي مسایلو پورې اړه لري. دې ډول کتابونو ته سنن وایي، لکه: سنن ابي داود، سنن نسائی، سنن ابن ماجه، سنن دارمي، او داسې نور.

ج ـ هغه کتابونه چې په یوه ځانګړې موضوع پورې اړونده احادیث یکې راټول شوي وي، لکه: یوازې د عقایدو په برخه کې، یا د اخلاقو او آدابو په برخه کې. له دې جملې څخه (**کتاب السنة**) د امام احمد بن حنبل - رحمه الله - کتاب چې په عقیدې کې یې لیکلی او (الادب المفرد) د امام بخاري کتاب چې په آدابو کې یې لیکلې دی د یادونې وړ دي.

**۲ـ مسانید**

مسانید د مسند جمع ده او مسند هغه کتاب ته ویل کیږي چې د هر صحابي روایات په کې بېل بېل ذکرشوي وي.

مسانید په دوه ډوله دي.

اـ یو هغه ډول مسندونه دي چې د مسند لیکونکی د حدیث شروع له صحابي څخه کوي او د هر یو صحابي روایات د نورو صحابه وو د روایاتو څخه جدا ذکر کوي، لکه: د امام احمد بن حنبل مسند او د ابوداود طیالسي مسند.

ب ـ بل هغه ډول مسندونه دي چې د سند د لومړي برخې څخه شروع کوي. يعنې د مسند مؤلف حديث د خپل شيخ، يا استاد څخه پيل کوي او يوازې هغه حديثونه ذکر کوي چې د خپلو استادانو او يا شيوخو څخه يې اوريدلي وي، لکه: د امام طبراني المعجم الکبير، المعجم الاوسط او المعجم الصغير.

**د ځينو مشهورو صحيحو کتابونو پېژندنه او ځانګړتياوې**

**١ـ صحيح البخاري**

دا د محمد بن اسماعيل البخاري ( المتوفى: ٢٥٦هـ) کتاب دی چې په (الجامع الصحيح) شهرت لري.

له قرآن کريم څخه وروسته تر ټولو معتبر او صحيح کتاب دی، دا لومړنی کتاب دی چې يوازې پکې د رسول الله ﷺ متصل السند احاديث راجمع کړای شوي دي.

د احاديثو شمېره يې له تکرار سره (٧٣٩٧) او له تکرار څخه پرته (٢٧٦١)ده.

صحيح البخاري خورا زياتې شرحې لري، چې مشهورې شرحې يې فتح الباري د امام ابن حجر عسقلاني او عمدة القاري د بدر الدين عيني دي.

**٢ـ صحيح مسلم**

د دې کتاب ليکوال ابو الحسين مسلم بن حجاج نيشاپوري قشيري ( المتوفى:٢٦١هـ) دی چې د امام بخاري له تکړه شاګردانو څخه هم وو.

صحيح مسلم د امام بخاري له کتاب څخه وروسته دويم کره کتاب دی.

د احاديثو شمېره يې له تکرار سره (٧٧٤٨) او بې له تکراره (٣٠٣٣) ده.

صحيح مسلم هم زياتې شرحې لري، لکه: الاکمال د قاضي عياض رحمة الله عليه، المفهم د امام قرطبي –رحمة الله تعالى– او مشهوره يې المنهاج د امام نووي –رحمة الله عليه– شرحه ده.

**٣ـ سنن ابي داود**

مؤلف يې سليمان بن اشعث سجستاني (المتوفى:٢٧٥هـ) دی.

د دې کتاب مؤلف احاديث د پنځو لکو حديثونو له جملې څخه رابيل کړي دي. امام ابو داود –رحمة الله– د خپل کتاب په اړه داسې وايي:( ما په دې کتاب کې يوازې صحيح احاديث يا هغه چې صحيحو احاديثو ته ورته والی لري ذکر کړي دي. که چېرې په کوم

ځای کې کومه کمزوري لیدل کیږي هغه مې په ګوته کړي ده. د کومو احادیثو په باره کې که چوپ پاتې شوی یم هغه هم د عمل وړ دي.)

په دې کتاب کې زیاتره هغه احادیث راوړل شوي چې په فرعي او فقهي مسایلو پورې تړاو لري. ټول یکې (۵۲۷۴) حدیثونه راټول شوي دي. دا کتاب هم ډیرې شرحې او حاشیې لري چې مشهوره یې معالم السنن د امام خطابي (رحمة الله تعالی) شرحه ده.

**۴ـ جامع الترمذي**

ددې کتاب لیکوال امام ابو عیسی محمد بن عیسی بن سوره الترمذي (المتوفی:۲۷۹هـ) دی.

مؤلف په خپل کتاب کې صحیح، حسن او ځینې ضعیف احادیث ذکر کړي او د هر یو حدیث درجه یې بیان کړې ده، او د دې تر څنګ یې د صحابه وو، او تابعینو مذاهب هم بیان کړي دي.

امام ترمذي - رحمة الله تعالی- د خپل کتاب په اړه وایي: (کله مې چې دا کتاب ولیکه نو د حجاز، عراق او خراسان علماوو ته مې وړاندې کړ چې ټولو خوښ کړ. د هر چا په کور کې چې دا کتاب پروت وي لکه چې پیغمبرﷺ په خپله د ده په کورکې شته او خبرې کوي.)

په جامع الترمذي کې ټول (۳۹۵۶) حدیثونه دي. جامع الترمذي زیاتې شرحې او حاشیې لري، لکه: عارضة الاحوذي د امام ابن العربي- رحمه الله - شرحه، (**تحفة الاحوذي**) د علامه مبارکپوري شرحه.

**۵ـ سنن نسائي**

دا کتاب د امام ابو عبدالرحمن احمد بن شعیب النسائي (المتوفی:۳۰۳هـ) لیکنه ده.

زیاتره احادیث یې صحیح دي، آن تر دې چې ځینو علماوو دا کتاب په سنن ابي داود او سنن ترمذي هم غوره بللی. ټول په کې د تکراره سره (۵۷۶۱) حدیثونه راغلي دي.

**۶ـ سنن ابن ماجه**

لیکونکی یې ابو عبدالله محمد بن یزید ابن ماجه قزویني (المتوفی:۲۷۳) دی.

ددې کتاب مرتبه د ذکر شوو کتابونو په پرتله ټیټه ده.

د احادیثو مجموعه یې ( ۴۳۴۱) ده هغه احادیث چې یوازې ده ذکر کړي دي او نورو پنځو کتابونو نه دي ذکرکړي (۱۳۳۹) حدیثونه دي.

**۷ـ د امام مالک –رحمة الله تعالی– موطأ (ت ۱۷۹ هـ)**

دا کتاب په خپله امام مالك بن انس (رحمة الله تعالی) چې د څلورو مشهورو امامانوڅخه دوهم امام دی، لیکلی او خپلو شاگردانو، ته به یې په مسجد النبوي کې تدریس کاوو. لوی لوی امامان به د موطأ تدریس ته ناست وو. امام شافعي رحمه الله تعالی چې موطأ یې په یادو زده کړی وه وایي: (ماته د الله جَلَّ جَلَالُهُ له کتاب څخه وروسته له موطأ نه پرته بل کتاب ډېر صحیح نه ښکاري).البته ده دا خبره هغه وخت کړې وه چې د امام بخاري او امام مسلم صحیحین نه وو لیکل شوي. په موطأ کې د پیغمبر ﷺ په متصلو احادیثو برسیره، مرسل حدیثونه، د صحابه وو اوتابعینو اقوال هم ذکرشوي. د موطأ ترتیب د فقهي کتابونو په څیر دی.

**۸ـ د امام احمد (رحمة الله علیه) مسند(۲٤۱ هـ)**

د دې مسند مؤلف امام احمد بن حنبل شیباني دی چې د څلورو مشهورو امامانوڅخه څلورم امام دی.

امام احمد –رحمة الله علیه– د خپل مسند په هکله فرمایي: ما د دې مسند احادیث د اوو لکو احادیثو[1] له جملې څخه انتخاب کړي دي. که د کوم حدیث په اړه د مسلمانانو ترمنځ اختلاف پیدا شي، نو په دې مسندکې دې د هغې حل ولټوي، که چیرې یې د هغې حل په کې ونه موند، نو بیا دغه حدیث صحت نه لري. د امام احمد رحمة الله علیه په مسند کې څه کم دېرش زره احادیث راجمع شوي دي.




۱ـ د احادیثو کتابونه د ترتیب په بناء په څو ډوله دي؟

۲ـ جوامع کومو کتابونو ته ویل کیږي؟ نمونه یې واخلئ.

۳ـ امام ابو داود د خپل کتاب په هکله څه وایي؟

۴ـ د امام ترمذي دکتاب په باره کې معلومات وړاندې کړئ.

۵ـ تر ټولو لوی مسند د چا مسند دی او څو احادیث لري؟

---

۱ـ گران زده کوونکي باید په دې پوه شي: کله هم چې په احادیثو کې د لکونو عدد ذکر کیږي، له هغه څخه د سند په اعتبار حدیث مراد وي، نه د متن په اعتبار، ځکه د متن په اعتبار د مرفوعو احادیثو شمېر چې تکرار یې په نظر کې ونه نیول شي په زرگونو دی، لکونو ته نه رسیږي، خو څرنگه چې یو متن په مختلفو سندونو راغلی وي، نو هر سند ته په پاملرنه که هغه ټولې لارې بېل بېل حدیثونه وگڼل شي، او د متن تکرار ته ونه کتل شي، په دې توگه د احادیثو شمېر بیا لکونو ته رسیږي.

شپاړسم لوست

# مسؤوليت

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَمسؤول عَنْ رَعِيَّتِهِ فَالْإِمَامُ رَاعٍ وَمسؤول عَنْ رَعِيَّتِهِ وَالرَّجُلُ فِي أَهْلِهِ رَاعٍ وَهُوَ مسؤول عَنْ رَعِيَّتِهِ وَالْمَرْأَةُ فِي بَيْتِ زَوْجِهَا رَاعِيَةٌ وَهِيَ مسؤولةٌ عَنْ رَعِيَّتِهَا وَالْخَادِمُ فِي مَالِ سَيِّدِهِ رَاعٍ وَهُوَ مسؤول عَنْ رَعِيَّتِهِ قَالَ فَسَمِعْتُ هَؤُلَاءِ مِنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَحْسِبُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالرَّجُلُ فِي مَالِ أَبِيهِ رَاعٍ وَمسؤول عَنْ رَعِيَّتِهِ فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مسؤول عَنْ رَعِيَّتِهِ. رواه البخاري

**د راوي پېژندنه**

عبدالله بن عمر بن الخطاب رضي الله تعالى عنه د بعثت په دريم کـال زېـږيدلی دی. لس کلن و چې هجرت يې وکړ. د بدر او احد له غزا څخه د عمر د کمـوالي لـه کبله ايسار کړی شو، بيا د خندق غزا کې، چې پـنځلس کلـن وو شـريک شـو. د ديـن لـه امامـانو او زاهدانو څخه وو تل به يې حج کاوه، په کلکه به يې د پيغمبرﷺ پلونه او آثار تعقيبول قيام الليل (د شپې لمونځ ) او تلاوت به يې ډېر کاوه. لـه رسـول اللهﷺ څخـه يـې ډېـر احاديـث روايت کړي دي. د (۸۷) کالو په عمر په (۷۲) يا (۷۳) هجري کال وفات شو.

**د ځينو کلماتو معنا**

١_رَاعٍ: شپون، ساتونکی، مسؤول او واکمن

٢_رَعِيَّة: ولس، لاس لاندې خلک

٣_مسؤول: پوښتل شوی او ځواب ويونکی

٤_أَحْسِبُ: گومان اوفکرکوم

٥_فَكُلُّكُمْ: نو تاسې هر يو

**د حديث ژباړه**

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما وايي، له رسـول اللهﷺ څخـه يـې واوريـدل چـې ويـل يـې: تاسو هر يو رعيت لري او د خپل رعيت په هکله مسؤول ياست، پادشاه رعيـت والا دی او د خپل رعيت مسؤول دی، خاوند په کورکې رعيت لـري او هغـه د خپـل رعيـت مـسؤول

دی، مېرمن د خاوند په کور کې رعیت لري او د خپل رعیت مسؤوله ده، خادم د خپل بادار د مال په اړه رعیت لري او د خپل رعیت مسؤول دی. عبدالله بن عمر صاحب وايي: دغه ټول مې له رسول اللهﷺ څخه واوریدل او فکرکوم دايي هم وویل چې زوی د خپل پلار په مال کې د رعیت څښتن دی او د خپل رعیت مسؤول دی، په دې توګه ستاسې هر یو د رعیت څښتن او ستاسې هر یو د خپل رعیت مسؤولیت په غاړه لرئ.

## دحديث حکمت

په اسلامي نړۍ لید او تصور کې انسان مهمل او بې هدفه نه دی پیدا شوی. دلته هر انسان مسؤولیت لري، نارینه وي که ښځینه، پادشاه وي، که ګدا، خادم وي که مخدوم...

که هرڅوک وي اسلام پرې ځانګړي وجائب او مسؤولیتونه ایښي او د هغو په ادا کولو یې مکلف کړی دی. الله تعالی به د حساب او کتاب په ورځ ترې پوښتنه کوي او د هغو جزا به ورکوي.

پر پادشاه باندې اسلام د خپل رعیت په هکله مسؤولیتونه ایښي، پر پلار او مور باندې د اولادونو په اړه، پر اولادونو باندې د مور او پلار په اړه، پر خاوند د مېرمنې په اړه او په مېرمنې د خاوند په اړه... په دې توګه پر هر انسان باندې یې مسؤولیتونه ایښي او د هغو په اړه ترې پوښتنه کیږي.

**فعالیت:**

فکر وکړئ چې کوم انسان مسؤولیت نه لري په نوبت سره یې نومونه واخلئ.

## د حديث شريف ګټې

د مسؤولیت د ارزښت له کبله رسول اللهﷺ دغه مسأله صحابه کرامو ته واوروله او امت ته یې د تلپاتې درس په توګه پرېښوده.

د حدیث په سر کې رسول اللهﷺ د عمومي مسؤولیت یادونه په اجمالي توګه کړې چې: (کلکم راع و مسؤول عن رعیته ) له هغه وروسته یې یو شمېر ډېر مهم مسؤولیتونه چې په ټولنه کې ډېره اغېزه لري په ټاکلې توګه په ګوته کړي. امام او پاچا او د هغه مسؤولیتونه د کورنۍ دوه مهم مسؤولین پلار او مور یا خاوند او مېرمن او د هغوی مسؤولیتونه او

عمومي کارکوونکي او د هغوی مسؤولیتونه او د حدیث په پای کې یې د عمومي مسؤولیت ټینګار بیا تکرار کړی.

**۱_د امام او پاچا مسؤولیتونه**

له امام څخه مطلب پاچا امیر او خلیفه دی. د خلیفه او امیر ځانګړي مسؤولیتونه دا دي: د دین إقامه، دشرعي احکامو پلي کول، په عدل او انصاف سره حکومت کول، د رعیت عامه ګټې او مصلحتونه خوندي کول، امن او امان ساتل، د ژوند د اسانتیاوو برابرول او د خپل رعیت په اړه د شفقت، مهرباني او خیر غوښتنې چلن.

**۲_د پلار مسؤولیتونه**

دخپلې مېرمنې او اولاد نفقه، جامې او نور لګښت برابرول، د هغوی تعلیم او روغتیا ته پاملرنه، د هغوی عبادتي، اخلاقي کړو وړو او روزنې ته پاملرنه، په ځانګړې توګه د هغوی لمانځه، تلاوت، او دیني مطالعې ته پام او په عمومي توګه له هغوی سره د رحمت، شفقت او ښه او خواږه سلوک چلن.

**۳_د مور مسؤولیتونه**

مور په خپل وار د کور او اولادونو په اړه مسؤولیت لري. دا چې نارینه د ورځې زیاته برخه له کوره بهر په کارونو بوخت وي، د کور او اولادونو په اړه د مور مسؤولیت لا درنېږي.

د کور د ننه چارو ښه سنبالول، د اولادونو روزنه، د اخلاقي مفاسدو مخنیوی، د مېلمنو استقبال او د هغوی اکرام او درناوی، د خپل ځان، نجونو او هلکانو پت، عزت او اسلامي وقار او عفت ساتل او داسې نور.

ښځه او خاوند د کور په ډېرو مسؤولیتونو کې سره شریک دي. له دې امله ښایي د دواړو ترمنځ د خپلو مسؤولیتونو د اداء کولو په هکله سلا مشوره پوره او بشپړ تعاون موجود وي.

**٤_ د خادم مسؤولیتونه**

په همدې توګه خادمان، کارګران، مزدوران او په عمومي توګه یو له بل سره کار کوونکي د ښه خدمت، امانت، رښتینولی، متقابل احترام، خیرغوښتنې او خواخوږۍ

مسؤولیتونه په غاړه لري، تر څو د ژوند عامې چارې د مینې، ورورولۍ او احترام په فضا کې روانې وي.

**۵_هیڅوک بې رعیته او بې مسؤولیته نشته**

په مکلفو انسانانو کې د رعیت لرل او مسؤولیت لرل یو نسبي امر دی. کېدای شي یو څوک په یو وخت کې خپل رعیت او مسؤولیت هم ولري او د بل چا تر رعیت او مسؤولیت لاندې هم وي، خو دا نشي کېدای چې یو څوک دې هیڅ ډول رعیت او مسؤولیت ونه لري. آن تر دې چې که یو څوک یوازې هم ژوند کوي، نه ښځه، نه خاوند، نه اولاد، نه خادم او نه بل څوک ورسره وی، بیا هم دی د خپل ځان او د بدن د غړو او حواسو مسؤولیت په غاړه لري. باید د هغو حفاظت او ساتنه وکړي. "إن لجسدك علیك حقا" بدن دې پر تا حق لري. په دې توګه چې د روغتیا او پاکوالي خیال یې باید وساتې، له عقیدې نیولې تر عباداتو او اخلاقو پورې شرعي اوامر پرځای کړي او په منهیاتو او منکراتو کې یې ونه کاروي. د الله پاك او بنده ګانو حقونه وربانديې پرځای کړي. له دې امله په یوازیتوب کې هم د رعیت څښتن دی، بدن، غړي او حواس یې رعیت دی او دی د هغو په هکله مسؤول دی.

**فعالیت:**

که څوك خپل مسؤولیت ادا نه کړي په ټولنه یې بدې اغیزې څه دي؟ ځواب ووایاست.




۱_دحدیث راوي معرفي کړئ.

۲_حدیث شریف ترجمه کړئ.

۳_د راعي، مسؤول او رعیت معنا ووایاست.

٤_د امام او پادشاه مسؤولیتونه کوم دي او ولې د پادشاه یادونه په ځانګړې توګه شوې؟



**کورنی دنده:**

پورتنی حدیث په خپلو کتابچو کې ولیکئ او په یادو یې زده کړئ.

# اووه هلاکوونکي ګناهونه [1]

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَأَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اجْتَنِبُوا السَّبْعَ الْمُوبِقَاتِ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا هُنَّ قَالَ الشِّرْكُ بِاللَّهِ وَالسِّحْرُ وَقَتْلُ النَّفْسِ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَأَكْلُ مَالِ الْيَتِيمِ وَأَكْلُ الرِّبَا وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ وَقَذْفُ الْمُحْصِنَاتِ الْغَافِلَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ. رواه البخاري

**د راوي پېژندنه**

ابوهريره عبد الرحمن بن صخر الدوسي رضي الله عنه د خيبر د غزا په کال يې اسلام راوړ او د خيبر په غزا کې شريک شو، مديني ته يې هجرت کړی او دنبوي مسجد په صفه کې اوسيده. ځان يې د رسول الله ﷺ صحبت ته وقف کړی وو، په همدې خاطر يې له رسول الله ﷺ څخه تر ټولو زيات احاديث روايت کړي دي. د عمر رضي الله تعالی عنه په خلافت کې د بحرين والي وو او په (۵۸) هجري کال د عقيق په سيمه کې د (۷۸) کالو په عمر وفات شو.

**د ځينو کلماتو معنا**

۱_الْمُوبِقَاتِ: د موبقة جمع ده، موبقة د اسم فاعل لفظ دی معنا يې ده: هلاکوونکي، تباه کوونکي.

۲_التَّوَلِّي: د مصدر لفظ دی، شا اړول، مخ ګرځول، تيښته کول.

۳_الزَّحْفِ: په ناسته ښښيدو او تګ ته وايي. دلته د دوو لښکرو نژدې کيدل او يوځای کيدل ترې مراد دی.

٤_قَذْف: د مصدر لفظ دی ويشتلو او غورځولو ته وايي دلته ترې مراد په پاک لمنو ښځو پورې د زنا او بې حيايی تور تړلو ته وايي.

٥_الْمُحْصِنَات: د **محصنة** جمع ده، معنا يې ده: پاک لمنه او عفيفه ښځه.

٦_الْغَافِلَاتِ:د **غافلة** جمع ده او **غافلة** د اسم فاعل صيغه ده معنا يې ده: ناخبره.

## د حدیث ژباړه

له ابو هریره‌رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله‌ﷺ وفرمایل: له اوو هلاکونکو څخه ځانونه وژغورئ! پوښتنه وشوه: ای د الله‌جل جلاله رسوله، هغه څه شی دي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: الله‌پاک سره شریک نیول، کوډې کول، په ناحقه سره انسان وژل، د یتیم مال خوړل، سود او ربا خوړل، د غزا او جګړې له ډګر څخه تېښته او په مؤمنو او پاک لمنو ناخبرو ښځو پورې د زنا او بې حیایی تور تړل.

## د حدیث حکمت

ګناه که هر څه وي، له الله تعالی څخه سرغړونه او نافرماني ده، ځکه خو ګناه که وړه وي او که ستره بد عمل دی.

ځینې ګناهونه نسبتاً واړه وي او که کله هم له چا څخه صادر شي، نو د ورپسې نیکو عملونو له امله له منځه ځي، خو ځینې ګناهونه دومره خطرناک او هلاکوونکي وي چې څوک ترې په رښتیا توبه ونه باسي، نو په یقیني توګه انسان هلاکوي. په پورتني مبارک حدیث کې ددغسې هلاکوونکو ګناهونو یادونه شوې ده.

**فعالیت**

په ګروپي شکل د کبیره ګناهونو نورې پنځه نمونې ووایاست.

## د حدیث شریف ګټې

### ۱_له الله‌جل جلاله سره شریک نیول ستر ظلم دی

له الله‌جل جلاله پاک سره د هغه په ذات، صفاتو او اسماوو کې بل څوک شریکول.

له الله‌جل جلاله سره شریک نیول ستر ظلم دی. شرک د انسان ټول نیک عملونه له منځه وړي، الله تعالی هیڅکله شرک نه ښښي او نور ګناهونه چې یې چاته خوښه شي ببښي یې.

په قرآن کریم او احادیثو کې لاندې عملونه له الله پاک سره شرک ګڼل شوي دي:

- له الله پرته پر مخلوق باندې لوړه او قسم کول، لکه: په زیارت قسم، د زوی یا پلار په سر قسم، په شرافت قسم، په وجدان قسم او داسې نور.
- کوډې او هغه دمونه او تعویذونه چې په کې شرکي الفاظ استعمال شوي وي.
- بد فالي نیول
- د ریاء لپاره لمونځ، روژه او زکاة ورکول

○ په دې عقيده د کونجکو، هډوکو، ښکرونو او داسې نورو شيانو په غاړه کې اچول چې دا د نظر لګيدو اونورو آفاتو مخنيوی کوي.

**۲ـد سحرحقيقت، دنيوي او اخروي زيانونه يې**

د اسلام مبارک دين په اصلاح او خير رسولو ټينګار کوي، په حقيقتونو ولاړ دين دی له هر قسمه وهمونو، خيالونو، او بې ځايه وېرېدلو څخه خلک منع کوي.

کوډې چې د وهمونو، خيالونو عقيدوي بې ثباتۍ، فتنو او فساد خپرولو، نورو ته د بدني، روحي، اجتماعي زيان رسولو څخه عبارت دي، زده کړه او نورو ته يې ورښودل حرام دي حتی په ځينو حالاتو کې انسان کفر ته پرې رسېږي. دا هغه ناوړه عمل دی چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول د کوډګر سزا يواځې قتل دی.

په حديث شريف کې راغلي: چا، چې فال وکوت او چا ته چې فال وکتل شو، چا چې غيب ويل کول او د چا لپاره چې غيب ويل کيدل، چا چې کوډې وکړې او د چا لپاره چې کوډې وشي، څوک چې غوټې اچوي او بندونه جوړوي، يا کاهن ته ورشي او د هغه خبره رښتيا وګڼي، نو پر محمدﷺ باندې پر نازل شوي دين کافر شو.[1]

**۳ــ د يو انسان وژنه د ټول انسانيت وژل دي**

انسان د الله تعالی مکرم مخلوق دی. د هغه سر، مال، پت او عزت ځانګړی حرمت لري چې ساتل يې فرض او ماتول يې حرام دي.

په اسلام کې د انسان وژل ډېر غټ جرم دی، د قرآنکريم په ګڼو آيتونو کې دغه جنايت منع شوی، د يو انسان قتل او وژنه يې د ټول انسانيت قتل او وژنه ګڼلې او د يو انسان ژغورل يې د ټول انسانيت ژغورل ګڼلي دي: ﴿مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا....﴾ [ المائدة: ۳۲]

**ژباړه:** چاچې يو انسان دوينې له بدلې يا په ځمکه کې له فساد جوړولو پرته (په ناحقه) وواژه ، داسې وګڼه چې هغه ټول انسانانې ووژل...

**٤ــد سرطاني غړي له مينځه وړل**

که چا څوک په ناحقه وواژه يا يې د چا عزت ولوټلو، يا يې په دين لوبې وکړې او مرتد شو او له هغو پولو واوښت چې هغه انسان او ټولنې ته ګواښ دي نو بيا د دې انسان چاره د بدن د سرطاني غړي په څېر په کار ده چې له منځه يوړل شي او پرې شي ترڅو نور انسانان د ده له شر او ضرر څخه په امن شي.

---

۱ – رواه البزار فی مسنده. په دې صورتونو کې تر څو چې د شخص په عقيده کې خلل نه وي راغلی، په ستر کفر سره نه کافرېږي، ځکه د اهل سنت او جماعت په نزد د يو چا ايمان په عملي ګناه سره نه نقض کېږي، نو دلته له کفر څخه عملي کفر مراد دی نه اعتقادي.

شريعت دغسې انسانان په ګوته کړي او د وژلو حکم يې ورکړی. رسول اللهﷺ فرمايي: «لَا يَحِلُّ دَمُ امرئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَّا بِإِحْدَى ثَلَاثٍ الثَّيِّبُ الزَّانِي وَالنَّفْسُ بِالنَّفْسِ وَالتَّارِكُ لِدِينِهِ الْمُفَارِقُ لِلْجَمَاعَةِ»[1] **ژباړه:** هغه مسلمان چې لااله الا الله محمد رسول الله کلمه وايي وينه توييول يې روا نه ده، خو په درې صورتونو کې: محصن زناکار، قاتل او يا مرتد چې اسلام پرېږدي او له مسلمانانو نه جلا شي.

**٥_ ګېډه له اور څخه ډکول**

يتيم هغه مظلوم انسان دی چې خپل مهربان او زړه خوږی پلار يې له لاسه ورکړی وي. د هر چا مرستې ته اړتيا لري په ځانګړې توګه چې د هغه د مال ساتنه او پالنه وکړي. اللهپاک په قرآن کريم او د رسول اللهﷺ په احاديثو کې يتيم ته په پاملرنې او توجه باندې ټينګار کړی دی. الله پاک ددې ګناه په هکله په قرآنکريم کې فرمايي:﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا﴾ [النساء:١٠]

**ژباړه:** «بيشکه هغوی چې په زور زياتي سره د يتيمانو مالونه خوري، هغوی په خپلو ګېډو کې اور اچوي او ژر دی چې د دوزخ اورته به ننوزي» د يتيمانو مال خوړل، ډېره بې همتي، ناځوانه عمل او غټه ګناه ده، او له همدې امله اسلام پر ټولنې باندې د يتيم په وړاندې مسؤوليتونه ايښي چې يو له هغو څخه د يتيم د مال ساتنه او پالنه او د هغه له ضائع کېدو، په هغه کې له خيانت او د هغه له خوړلو څخه په ټينګه ډډه کول دي.




١_حديث شريف ترجمه کړئ؟

٢_پورته کوم شيان دي چې په احاديثو کې شرک بلل شوي؟ نومونه يې واخلئ.

٣_د کوډو، فال ليدو، او غير شرعي دمونو او تعويذونو ضررونه وښاياست.

٤_په کوم آيت کې د يوه بې ګناه انسان وژنه د ټول انسانيت وژنه او د هغه ژوند ژغورل د ټول انسانيت ژوند ژغورل ښودل شوي دي؟

٥_هغه ځايونه چې د يو مسلمان قتل په کې د شريعت له مخې جواز لري کوم دي؟ دليل يې وښاياست.

---

١ - متفق عليه

# اووه هلاکوونکي ګناهونه (۲)

........ وَأَكْلُ الرِّبَا وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ وَقَذْفُ الْمُحْصِنَاتِ الْغَافِلَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ.

**۵ـ سود یا له الله ﷻ او پیغمبر ﷺ سره جګړه**

سود (ربا) یو بل خطرناك رنځ دی چې نېغ په نېغه د ټولنې غریب او بې وزله خلك کړوي. په ټولنې کې انساني مفاهیم، لکه: زړه سوی، ښېګڼه، خواخوږي، قرض حسنه او داسې نور له منځه وړي او پرځای یې بخل، زړه سخت توب، مصلحت غوښتنه او مادي توب خوروي. ځکه الله تعالی سود خوړل له غریبو او اړمنو سره دښمني نه، بلکې له الله تعالی او د هغه له پیغمبر سره دښمني او د جنګ او جګړې اعلان ګڼلی دی: ﴿فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾ [البقرة:۲۷۹]

**ژباړه:** نو که له دې کار(سود) څخه لاس نه اخلئ. بیا د الله ﷻ او د هغه د پېغمبر ﷺ جنګ ته تیار شئ.

سود خوړونکو ته الله تعالی تر ټولو بده سزا ټاکلې ده.

د خواشینۍ ځای دی چې نن سبا په نړۍ واله کچه سود ډېر پراخه شوی، نړۍ یې له یو خطرناك اقتصادي بحران سره مخامخ کړې او ورسره غبرګ یې د روحي او اخلاقي فساد په جال کې نښلولې ده.

**فعالیت**

په ډله ییزه توګه دسود بدي اغیزې جلا جلا بیان کړئ.

**٦ـ د یوه تن تېښته لښکر ته ماته ورکوي**

کافرانو، باطل پالو او مفسدینو سره د جهاد او مبارزې وروستی پړاو له هغوی سره مخامخ جګړې ته دانګل او د وسله والې جګړې پرېکړه ده. په داسې حساسو شېبو کې مقاومت فرض او تېښته لویه ګناه ده، ځکه د جګړې په ترځ کې د یوه تن تېښته د جنګي مورال

په له منځه وړلو سره ډېر ځله یو ستر لښکر ته ماته ورکوي. په داسې حساس وخت کې تېښته یا هم ثبات او استقامت د جګړې پایلې بدلوي.

### ۷ـ پر پاک لمنو ښځو تور لګول

ښځې په اسلام کې ډېر لوړ مقام لري. په ځانګړې توګه د هغو وقار او پت په شریعت کې په پوره پاملرنې سره مطرح دی، کوښښ شوی څو د دوی عزت خوندي وساتل شي. د ښځو پر شخصیت ملنډې، توهین او تحقیر، بې ارزښته ګڼل او د نارینه وو د نفسي غوښتنو لپاره له هغوی څخه کار اخیستل ستره ګناه ګڼل شوې، چې په آخرت کې د عذاب لامل جوړېږي.

پر دې سربېره هغه چا ته په دنیا کې هم درنه سزا ټاکل شوې چې د ښځې او یا نارینه د شخصیت درناوی ونه کړي، د هغوی عزت او حیا ته په بده سترګه وګوري نو که چا کوم مسلمان سړي او یا مسلمانې ښځې ته د بد لمنۍ نسبت وکړ، په خپله دعوا به شاهدان راولي که شاهدان یې تېر نشو کړای محکمه به ورته د عامو خلکو په وړاندې د اتیا (۸۰) درو وهلو سزا ورکړي او شهادت او ګواهي به یې د خلکو ترمنځ د تل لپاره بې اعتباره اعلان شي.

**فعالیت**

هغه کوم سورت دی چې په پاک لمنو ښځو د تور لګوونکي لپاره پکې سزا ټاکل شوې ده؟




۱ـ په قرآن کریم او احادیثو کې ولې د یتیمانو پر پاملرنې ټینګار شوی دی؟

۲ـ کوم عمل له الله پاک او پیغمبرﷺ سره جګړه بلل شوې دی؟

۳ـ په جهاد کې تېښته ولې هلاکوونکې ګناه ده؟

٤ـ په اسلامي شریعت کې پر پاک لمنې مسلمانې ښځې باندې د بدلمنۍ د تور لګولو څخه سزا ټاکل شوې ده؟

نولسم لوست

# امر بالمعروف او نهی عن المنکر

(عَنْ حُذَيْفَةَ بْنِ الْيَمَانِ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنْ الْمُنْكَرِ أَوْ لَيُوشِكَنَّ اللَّهُ أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عِقَابًا مِنْهُ ثُمَّ تَدْعُونَهُ فَلَا يُسْتَجَابُ لَكُم). رواه الترمذي

**د راوي پېژندنه**

**حذيفة** بن اليمان العبسي رضي الله عنه مشر صحابي وو. د خندق په غزا او له هغه وروسته نورو غزواتو کې شريک و، د خندق په غزا کې رسول الله ﷺ د کافرانو لښکر ته د احوال اخستو لپاره لېږلی وو. رسول الله ﷺ ورته د منافقانو د پېژندګلوۍ په شمول ډېر اسرار ويلي وو چې د صحابه وو په منځ کې په صاحب سر رسول الله يادېده. عمر فاروق رضي الله عنه به هغې جنازې ته نه ورته چې **حذيفة** رضي الله عنه به پکې برخه نه اخيسته.

د ډېرو غزواتو په شمول د عراق په فتوحاتو کې شريک وو. د نهاوند په غزا کې يې ګډون درلود، همدان، ری، او دينور د ده په مشرۍ کې فتحه شوي. د ارمينيا له غزا وروسته يې د مسلمانانو درېيم خليفه عثمان رضي الله عنه ته د قرآن کريم د ترتيب مسأله مطرح کړه. زيات احاديث يې له رسول الله ﷺ څخه روايت کړي دي. د عمر رضي الله عنه په خلافت کې د مدائن والي ټاکل شوی او همالته د والي په توګه وو چې د هجرت په (۳۶) کال کې وفات شو.

**د ځينو کلماتو معنا**

۱ـ **وَالَّذِي**: (و) په دې ځای کې د قسم توری دی، (الذي) هغه څوک، هغه ذات (قسم دی په هغه ذات).

۲ـ **لَتَأْمُرُنَّ**: هرو مرو (خامخا) به امر کوئ.

۳ـ **الْمَعْرُوفِ**: يوه ډېره جامعه کلمه ده چې د خير، ثواب اوطاعت ټول کارونه پکې شاملېږي، لکه: ښېګڼه او نيکي چې عام خلک يې ښه ګڼي او بد پرې نه وايي.

٤ ـ **لَتَنْهَوُنَّ**: هرومرو به نهی کوئ، (ايسارول به کوئ).

٥_الْمُنْكَرِ: د معروف ضد دی: بدي او وراني، چې عام خلك پرې بد وايي او ښه يې نه ګڼي.

٦_لَيُوشِكَنَّ: ډېر ژر، ډېر نژدې.

٧_عِقَابًا: عذاب

٨_تَدْعُونَهُ: له الله جَلَّ جَلَالُهُ څخه به دعاګانې غواړئ.

**د حديث ژباړه**

له حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما سا د هغه په لاس کې ده چې تاسو به هرو مرو امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوئ او يا دا چې ډېر نژدې ده چې الله پاک در باندې له خپل لوري څخه عذاب راولېږي چې بيا به له هغه څخه دعاګانې غواړئ او قبلېږي به نه.

**د حديث حکمت**

اسلامي دعوت يا امر بالمعروف او نهی عن المنکر د اسلام له خورا مهمو مبادي او ارزښتناکو فرايضو څخه دي چې د اسلام د نورو احکامو قيام او بقاء ور پورې تړلې ده.

**فعاليت**

هر زده کوونکی دې د امر بالمعروف او نهی عن المنکر اغيز د اسلام د نورو ارکانو او احکامو د برپا کولو په هکله له ځان سره ياد داشت کړي او په نوبت سره دې نورو ته واوروي.

**د حديث شريف ګټې**

**١_د امر بالمعروف او نهي عن المنكر ارزښت**

په هره ټولنه کې دوه ډوله وګړي ژوند کوي: نيکان خلك هغه چې د پاکو عقيدو نيکو خويونو، خير غوښتونې او د غوره اخلاقو څښتنان وي.

او بله ډله بدان هغه چې د ناوړه سلوك د بدو عاداتو، د شر او فساد خويونو خاوندان وي.

د بدو اعمالو له خاوندانو څخه همیشه په فردي او ټولنیز ژوند کې ناسمې مفکورې د اسلام او انسانیت ضد کړنې، پر نوروظلم، تیری او ډول ډول فسادونه صادرېږي. که چیرې نیکان او صالحه وګړي ددغسې اشخاصو مخنیوي ونه کړي او دوی حق طرف ته ونه هڅوي، نو د ټولنې هره برخه به د شر او فساد ډګر وګرځي او انساني ټولنه به په داسې ځنګل بدله شي چې د عدل، انصاف، د ښو او بدو تمییز به پکې هیڅ نه وي.

امر بالمعروف او نهي عن المنکر د اسلامي امت هغه سپیڅلی صفت دی چې له پیغمبرانو څخه زموږ امت ته په میراث پاتې دی، دا هغه مهمه دنده ده چې د اسلامي ټولنې سلامتي او نیکمرغي ورپورې تړلې او د فساد د پراخېدو مخه ډب کوي.

**۲_خلک نیکیو ته رابلل**

د حدیث مفهوم د امر بالمعروف په هکله دا دی چې: تاسو به هرومرو خلکو ته په نیکیو او ښیګڼو امر کوئ. خلک به اسلامي عقیدې، اسلامي شریعت، اخلاقو، عزت، درنښت، حیا، احترام، محبت، وروری، عدل، انصاف او د یوه الله ﷺ بنده ګۍ ته رابلئ ، چې د دنیا او آخرت سعادت پکښې نغښتی دی.

**۳_ له بدیو څخه خلک منع کول**

په ټولنه کې خلک له خرابو افکارو، بدو اعمالو او ناوړه اخلاقو څخه منع کول او ایسارول د هر مسلمان فردي او ټولنیزه دنده ده. د اسلام د ستر پیغمبرﷺ له خوا په یوه کار باندې په دغسې مؤکدو الفاظو سره امر او ټینګار کول د هغه کار فرضیت او لزوم افاده کوي، په همدې اساس د اسلام د دین غوښتنه دا ده چې اسلام ته بلنه، امر بالمعروف او نهی عن المنکر د هر مسلمان ځانګړی او د ټول امت ټولنیز فرض دی، هغه هم په حکیمانه لارو چارو چې منکر له منځه ولاړ شي او د منکر له منځه وړل د ستر منکر (جنګ، نفرت او فساد) لامل ونه ګرځي.

**٤_ د امر بالمعروف او نهي عن المنکر د پرېښودو خطرونه او پایلې**

امر بالمعروف او نهي عن المنکر هغه مهمه دنده ده چې په پرېښودلو یې رسول اللهﷺ د عذاب د نازلیدلو اخطار ورکړی. د دې معنا دا ده چې اسلامي دعوت، امر بالمعروف او نهی عن المنکر که کله هم په ټولنه کې پرېښودل کېږي، نو ځای یې د الله تعالی لخوا ځانګړی عذاب نیسي، سربېره پردې په جامعه کې ظلم، بې انصافي، د زړونو سختوالی او ډول ډول فسادونه زیاتېږي او په پای کې ټولنه دهلاکت په درشل درېږي.

**٥ـ بيا به مو دعاء نه قبلېږي**

که دعوت، امر بالمعروف او نهي عن المنكر ترک شي، نو ډېر ژر به الله تعالی له خپل لوري عذاب را نازل کړي، که کله د دعوت (امر بالمعروف او نهی عن المنكر) په پرېښودو سره عذاب راغی، نو بیا که تاسې الله تعالی ته څومره دعاګانې او زارئ کوئ، نو دعا به مو نه قبلېږي، ځکه مسلمانانو به د دعوت په پرېښودو دومره ستر جرم او غټه ګناه کړې وي چې د دعا دقبلېدو ټولې لارې به يې په ځان تړلې وي.

**فعاليت:**

ايا له بديوخخه منع کول يوازې د علماوو دنده ده او که د ټولو مسلمانانو؟ زده کوونکي دې په خپل منځ کې پرې مباحثه وکړي.




١ـ لاندې کلمې معنا کړئ:

أ ـ **لَتَأْمُرُنَّ:**

ب ـ **الْمَعْرُوفِ:**

ج ـ **لَيُوشِكَنَّ:**

٢ـ د حديث د راوي په هکله لنډ معلومات ورکړئ.

٣ـ د حديث ژباړه ووایاست.

٤ـ که د اسلامي دعوت فريضه ترک کړل شي، نو پايله به يې څه وي؟

# په لګښت کې اقتصاد

عَنِ ابْنِ عُمَرَ ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الاقْتِصَادُ فِي النَّفَقَةِ نِصْفُ الْمَعِيشَةِ ، وَالتَّوَدُّدُ إِلَى النَّاسِ نِصْفُ الْعَقْلِ ، وَحُسْنُ السُّؤَالِ نِصْفُ الْعِلْمِ.

رواه الطبراني فی المعجم الكبير

## د ځينو کلماتو معنا

۱ـ **الاقْتِصَادُ:** اقتصاد د (قصد) له کلمې څخه ده چې په چارو او ويناوو کې د افراط او تفريط ترمنځ وسط حد ته ويل کېږي، په لګښت او نفقه کې اقتصاد د اسراف او تقتير (ممسک توب) ترمنځ حد ته وايي.

۲ـ **اَلْمَعِيشَةَ:** ژوند، روزګار.

۳ـ **التَّوَدُّدُ:** مينه کول، محبت کول.

## د حديث ژباړه

له عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ وفرمايل: اقتصاد (اعتدال په لګښت کې) نيم ژوند دی، او خلکو ته ځان ګرانول او نژدې کول نيم عقل دی، اوپه ښه ډول پوښتنه کول نيم علم دی.

## د حديث شريف حکمت

مال له خپل ارزښت او اهميت سره سره يو خطرناک شی دی، هغې لوښې توری ته ورته دی چې دواړه لوري يې تېره او غوڅوونکې وي، که انسان ورسره پوره پاملرنه او احتياط ونکړي، نو ارومرو به خپل بدن پرې غوڅوي.

اسلام مال ته ځانګړې پاملرنه کړې، د هغه د ګټلو او لګښت لپاره يې دقيق، جامع اصول او ضوابط ايښي دي. چې يو له دغو اصولو او ضوابطو څخه د اقتصاد (اعتدال) اصل او ضابطه ده چې تر ډېره حده په لګښت پورې اړه لري.

د اقتصاد اصطلاح او مفهوم د رسول اللهﷺ په ګڼو احادیثو او د قرآن کریم په ډېرو آیتونو کې ذکر شوې چې مونږ او تاسو یې د بېلګې په توګه د پورتني مبارك حدیث په ترڅ کې لولو.

## د حدیث شریف ګټې

### ۱ـ د قیمتي مال زېرمه د اقتصاد اصل دی

مال په یو وخت کې هم د خیر او ښېګڼې غوره وسیله او هم د شر او بدۍ ناکاره وسیله ده.

کور، اولاد اوعیال، نفقه او لګښت چې د انساني ژوند ډېره برخه جوړوي، ډېر ځله انسان د مال په اړه بې احتیاطۍ ته اړکړي چې په پای کې د بې وزلۍ او تنګلاسۍ له داسې جدي ستونزو سره مخ شي چې ژوند پرې تریخ او ورځخه په تېښته شي، سترګې پټې کړي او په ټولو انساني پولو او ارزښتونو پښې واړوي، په غلا، چور او تالان لاس پورې کړي، په ټولنه کې فساد، بد امني، اړ او دوړ رامنځته کړي. او یا هم د کار کولو همت بایلي، کچکول په غاړه کړي او د سوال لاسونه اوږده کړي او په ټولنه باندې یو درونـد پیټی جوړ شي.

اسلام دغه ستونزه د یوه خراب او دردوونکي واقعیت په توګه درك کړې او د هغې د مخنیوي لپاره یې د اقتصاد اصل او قاعده ایښې ده.

پدې مبارك حدیث کې رسول اللهﷺ اقتصاد نیم ژوند ګڼلی او بیا یې په ځانګړي تعبیر سره په لګښت کې اقتصاد د تنګلاسۍ او له هغو نه د راولاړو ستونزو د مخنیوي چاره ښودلې. پېغمبرﷺ فرمایلي دي:( مَاعَالَ مَنْ اقْتَصَدَ). [ احمد]

**ژباړه:** هیڅکله به فقیر او تنګلاسی نه شي هغه څوك چې په لګښت کې د اعتدال او میانه روۍ څخه کار اخلي.

له کومه ځایه چې په مالي چاروکې اقتصاد او اعتدال ډېره اغیزه او خورا مهم رول لري ټولې مالي چارې او مالي نظام د (اقتصاد) په نوم یاد شوی دی، نن سبا چې د اقتصاد اصطلاح کارول کېږي مقصد ترې ټولې مالي چارې او مالي نظام او سیستم دي.

**۲ـ اسراف چې د اقتصاد ضد، او د فقر لامل گرځي شرعا حرام دی**

د اقتصاد ضد ته په شریعت کې (اسراف) وایي چې په لګښت کې د افراط، بې نظمي، بې هدفي، بې او بې پلانه مفاهیم په کې شامل دي.

د لګښت ډېره برخه خوراك او څښاك جوړوي، الله تعالی د خوراك او څښاك په اړه فرمایي:﴿ وَ كُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ﴾ [الأعراف: ۳۱]. خورئ او څښئ خو اسراف او له حده تیری مه کوئ.

په خوراك او څښاك کې اسراف او له حده تېرېدل چې خومره د بدن روغتیا ته تاوان اړوي، له هغه نه زیات یې مال ته اړوي او نن سبا چې خومره مالونه په خوراك او څښاك کې له اسراف نه په راولاړو ناروغیو او د هغو په علاج لګېږي له هیچا پټ ندي.

**۳ـفي سبيل الله انفاق کې هم اقتصاد**

آن تر دې چې في سبيل الله انفاق، خیرات، صدقات، مرستې او عامه سخاوتمندي او داسې نور د خیر ښیګڼې لګښتونه هم باید د اقتصاد د تر قاعدې لاندې وي او د ثواب ګټلو جذبه او ولوله باید انسان د اقتصاد پولو ماتولو ته ونه هڅوي، الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَى عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُومًا مَحْسُورًا﴾.[الاسراء:۲۹]

**ژباړه:** لاس ترغاړې تړلی بخیل مه اوسه او مه دومره په خلاص مټ لګښت کوه چې سبا تش لاس او د ټولو ملامت ناست یې!

نو چې کله الله پاك د خیر ښیګڼې لګښت کې د اقتصاد غوښتنه کوي، نو نور لګښتونه خو باید ارومرو د اقتصاد په اصل ولاړ وي.

**۴ـد خلکوخوښي لاس ته راوړل لویه عقل مندي ده**

که څوك د الله ﷻ د رضا په خاطر د انسانانو سره مرسته کوي، د هغوی درناوی کوي، او ورسره نیک چلن کوي، داسې انسان الله ﷻ ته خوښ وي، او څوك چې الله ﷻ ته خوښ وي الله ﷻ د هغه سره مینه د بندګانو په زړونو کې هم اچوي د خلکو د خوښي له برکته تل انسان خوښ، هوسا، او په خپلو مقصدونو کې سرلوړی وي. د الله ﷻ د بندګانو خوښي تر لاسه کول غټه کامیابي او لویه عقل مندي ده.

**۵ _ ګټوره پوښتنه علم زیاتوي**

پوهه او علم د زړونو پټې خزانې دي چې په ګټورو پوښتنو رابرسېره کېږي، که چیرې لـه معلم څخه په ښه طریقه پوښتنه وشي ممکنه ده چې معلم د زړه له کـومي پـه ځـواب کـې داسې معلومات وړاندې کړي چې حاصلولو ته یې ډېره زیاته اړتیا وي.




۱_لاندې کلمې معنا کړئ:

**ا_ الاقْتِصَادُ:**

**ب_ الْمَعِیشَةِ:**

**ج_ التَّوَدُّدُ:**

۲_مال ولې دومره ارزښت لري؟

۳_د اقتصاد لغوي او اصطلاحي معنا څه ده؟

٤_حدیث ترجمه کړئ!

٥_اسراف ولې حرام دی؟ د هغه روغتیایي او مالي ضررونه بیان کړئ!

**کورنۍ دنده**

زموږ په ټولنه کې هغه دودونه او رواجونه په ګوته کړئ چې د اقتصاد په خلاف پر حـرام اسـراف روان دي، او د هغـو د مخنیـوي پـه لارو چـارو بانـدې غـور او فکروکـړئ، او د مخنیوي په باره کې یې لنډه مقاله ولیکئ.

# د الله جل جلاله کتاب او د پيغمبر ﷺ سنت

عَنْ مَالِك أَنَّهُ بَلَغَهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ لَنْ تَضِلُّوا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا كِتَابَ اللَّهِ وَسُنَّةَ نَبِيِّهِ.[موطأ مالك]

**د راوي پېژندنه**

مالك بن انس بن مالك الأصبحى الحميرى د دار الهجرت (مديني منورې) امام او د اهل سنت له څلورو مشهورو مذهبونو څخه د مالکي مذهب امام دی. په ۹۳ هجري کال په مدينه منوره کې زېږېدلی. پر دين کلك ولاړ وو. له اميرانو او باچاهانو څخه لرې اوسيده، آن تردې چې د واکمنانو له خوا ربړول شوی هم دی.
عباسي خليفه هارون الرشيد ترې وغوښتل چې دربار ته ورشي او ده ته سبق ووايي، خو امام مالك انکار وکړ او ويې ويل چې: علم ته خلك ورځي، علم خلکو پسې نه ورځي!
هارون الرشيد يې کورته ورغی او د درس په مجلس کې يې ديوال ته تکيه وکړه ، امام مالك وويل: دعلم درناوی د رسول الله ﷺ درناوی دی، نو تکيه يې پرېښوده او د امام په وړاندې کېنيناست. د خليفه منصور عباسي په غوښتنه يې د احاديثو مشهور کتاب موطأ وليکه. په همدې توګه: **الوعظ**، **المسائل**، **الرد على القدرية**، النجوم او تفسير غريب القرآن د نوموړي له ليکنو څخه دي. امام مالك بن انس په ۱۷۹ هـ. ق کال په مدينه منوره کې وفات شو.

**د ځينو کلماتو معنا**

١_تَرَكْتُ: له ترك څخه اخستل شوی: پرېښودل، ترك کول.

٢_أَمْرَيْنِ: د (امر) تثنيه ده:چاره، کار.

٣_لَنْ تَضِلُّوا: هېڅکله به بې لارې نه شئ.

٤_مَا تَمَسَّكْتُمْ: څوپورې مو چې منګولې پرې لګولې وي.

**د حديث شريف ژباړه**

امام مالك رحمة الله تعالى ته دا حديث رسيدلی چې پېغمبر ﷺ فرمايلي دي: په تاسو کې مې دوه شيان پرېښي دي، څو پورې مو چې پر هغو منګولې ښخې کړې وي هيڅکله به بې لارې نه شئ: د الله جل جلاله کتاب او زما سنت.

**د حديث حکمت**

قرآن د الله پاک وروستی کتاب دی چې د انسانيت د هدايت او لارښوونې لپاره يې نازل کړی، څو انسانان له تيارو څخه رڼا ته را وباسي او د ژوند په سمه لاره يې روان کړي. ترڅو چې انسانان پر قرآن کلك ولاړ وي، هيڅکله به بې لارې نه شي.

**د حديث شريف ګټې**

**۱ـ قرآن کريم د اسماني کتابونو ناسخ**

رسول اللهﷺ امت ته د اسلام دوه اصلي سرچينې په ګوته کړي څو د هغو په رڼا کې خپل ژوند تېر کړي. لومړی د الله کتاب (قرآن) او دوهم خپل سنت (حديث او سيرت).

قرآن کريم د اسلامي شريعت د تحليل او تحريم لومړنی مرجع ده. قرآن د ژوند ټولې چارې د اصولو او بنسټونو په توګه اجمالاً بيان کړې دي: ﴿...مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ...﴾ [الانعام: ۳۸]

**ژباړه:** موږ په قرآن کې د هيڅ شي کمی نه دی کړی (د اړتيا وړ شيان مو ټول ذکر کړي دي). الله تعالی خپل رسول محمدﷺ ته دنده سپارلې څو دغه اصولي لارښوونې په تفصيل سره د ژوندانه په ټولو جزئياتو کې پلې کړي. د دغو اصولو پر بنسټ يوه ټولنه جوړه کړي او نړيوالو ته دغه الهي لارښوونې يوازې په نظري توګه نه، بلکې په عملي توګه وړاندې کړي. الله تعالی د پيغمبرﷺ دغه حيثيت داسې بيانوي: ﴿...وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ [النمل: ٤٤]

**ژباړه:** موږ تاته ذکر(قرآن) نازل کړ څو خلکو ته نازل شوی کتاب شرح او توضيح کړې او ښايي دوی پکې غور او فکر وکړي.

جابرؓ وايي يوځل عمربن الخطابؓ په داسې حال کې چې د تورات يوه نسخه يې په لاس کې وه، راغی او ويې ويل: ای د الله ﷻ رسوله، دا د تورات يوه نسخه ده. رسول اللهﷺ څه ونه ويل. عمر رضی الله عنه د هغه په لوستو پيل وکړ. د پيغمبرﷺ پر مخ د غوسې او د خفګان نښې راغلې. په دې کې ابوبکرؓ پر عمرؓ غږ وکړ چې مور دې در باندې بوره شه عمره د پيغمبر مخ ته نه ګورې؟ کله چې عمرؓ د پيغمبرﷺ مخ ته وکتل، نو ژر يې وويل: د الله پاک او د هغه د پيغمبر له غوسې څخه پناه غواړم. د الله پاك په ربوبيت، د اسلام په دين او د محمدﷺ په نبوت خوښ او قانع يو. رسول اللهﷺ وفرمايل:

زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما ساه يې په واك كې ده، كه موسىؑ درته راڅرگند شي او تاسو هغه پسې لاړ شئ او ما پرېږدئ نو د حق له لارې څخه به بې لارې شئ، او كه موسىؑ ژوندى واى او زما پيغمبري يې موندلې واى نو زما تابعداري به يې كوله. [سنن الدارمى]

**۲ـ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سنت(حديث اوسيرت)، د قرآن تر ټولو ښه شرحه**

د پيغمبر سنت د قرآن كريم تر ټولو ښه شرح او تفسير دى. د هغه سيرت او د صحابه وو ټولنيز ژوند د قرآنكريم عملي او تطبيقي اړخ دى.

له رسول اللهﷺ څخه چې كومه خبره ثابته شوې ده، هغه په حقيقت كې د وحې يوه برخه ده،

الله پاك فرمايي:﴿ وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوَى۝ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى﴾ [النجم: ۳-۴]

ترجمه: پيغمبرله ځانه نه غږېږي، هغه خو ورلېږل شوې وحې ده.

نو په څه شي چې امر كوي بايد پلى كړى شي او له څه شي چې منع كوي بايد اجتناب ترې وشي، الله پاك فرمايي: ﴿..وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا...﴾ [الحشر:۷]

**ژباړه:**كوم دستور چې پيغمبر دركوي، عمل پرې وكړئ او له څه شي مو چې منع كوي ځان ترې وژغورئ.

په سنتو باندې منگولې لگول له ضلالت او بې لارې توب څخه د ژغورل كېدو او نجات يوازنى لاره ده.

**۳ـ د رسول اللهﷺ سنت يا دويمه وحې**

له قرآن نه وروسته سنت د اسلامي شريعت د تحليل او تحريم دويمه مرجع ده.

په دې توگه له سنتو څخه د الهي وحې د يوې برخې په توگه هيڅكله استغنا نشي راتلاى او د قرآن په شرح او شرعي احكامو باندې په پوهيدلو كې له پامه نشي غورځېدلاى.

رسول اللهﷺ په يو مبارك حديث كې چې مقدامؓ ترې روايت كړى فرمايي: خبر اوسئ! ماته قرآن او د هغه په څير نور څه (سنت) راكړل شوي دي).[۱]

۱ - ابوداود

په بل روایت کې راځي: داسې څوك ونه مومم چې ډډه یې وهلې وي او زما کوم امر یا نهی ورته ورسېږي او دی ووایي چې زه دا نه پېژنم، هغه څه منم چې په قرآن کې مې موندلي. [1]

د حدیثو او فقهې کتابونه په هغو مسائلو ډك دي چې په قرآن کې نشته، خو په حدیثو کې حلال یا حرام ګڼل شوي دي.

**٤_د لارې مشال**

د صحابه وو ټولنیز ژوند، په ځانګړې توګه د راشده خلافت دوره، د قرآن کریم د مقاصدو پر اساس جوړ او د بشري ژوند غوره بېله ده. ځکه خو رسول الله ﷺ په یوه مبارك حدیث کې امت ته پر هغې باندې د کلك درېدو ټینګار کوي او وایي: زما سنت او له مانه وروسته زما د راشدینو او مهدیینو خلیفه ګانو سنت کلك کړئ..) [2]

د راشده خلافت د دورې ټولنیزه تګلاره زموږ لپاره د فکري او عقیدوي خط چراغونه دي چې د ژوندانه په اوږدو لارو کې خپله لاره پرې رڼا کوو.




١_پورتنی حدیث شریف وژباړئ.

٢_دحدیث راوي څوك دی؟ معرفي یې کړئ.

٣_لاندې کلمات معنا کړئ:

- تَرَكْتُ:
- أَمْرَيْنِ:
- لَنْ تَضِلُّوا:
- مَا تَمَسَّكْتُمْ:

٤_ (نبوي سنت او سیرت د قرآنکریم ښه شرحه ده) دا مطلب واضح کړئ.




پورتنی حدیث شریف له معنا سره په یادو زده کړئ.

---

١ - معرفة السنن والآثار للبيهقي

٢ - مشكل الآثار للطحاوي

دوه ويشتم لوست

# په جهاد کې د ښځو ونډه

عَنْ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ قَالَتْ كُنَّا نَغْزُو مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَسْقِي الْقَوْمَ وَنَخْدُمُهُمْ وَنَرُدُّ الْجَرْحَى وَالْقَتْلَى إِلَى الْمَدِينَةِ. [صحيح البخاري]

**د راوي پېژندنه**

ربيع بنت معوذ بن عفراء رضي الله عنهما، د انصارو د بني نجار له قبيلي ښځه وه، ربيع بـي بـي په **بيعة الرضوان** کې حاضره او له رسول اللهﷺ سـره يـې پـه ځينـو غزواتـو کـې گـډون درلـود. نوموړې له يوې خوا زاهده، عابده او د خـدایﷻ د لارې مجاهـده وه، لـه بلـې خـوا د علـم او فضيلت خاونده هم وه. له دې بي بي ښځه ټول يويشت (۲۱) احاديـث روايـت شـوي دي. ډېـر عمر ژوندی وه. په پای کې د عبدالملك بن مروان په خلافت کـې د هجـرت پـه څـه د پاسـه اويايم کال کې وفات شوه.

**د ځينو کلماتو معنا**

۱_ **كُنَّا:** موږ وو.
۲_ **نَغْزُو:** غزا مو کوله، جهاد مو کاوه.
۳_ **نَسْقِي:** اوبه مو ور رسولې، اوبه مو ورکولې.
٤_ **نَرُدُّ:** وړل مو، لېږدول مو.
٥_ **الْجَرْحَى:** ټپيان، زخميان.
٦_ **الْقَتلَى:** قتل کړای شوي، وژل شوي.

**د حديث ژباړه**

له ربيع رضي الله عنها ښځه روايت دی چې وايي: موږ به له پيغمبـرﷺ سـره يـو ځـای غـزا کوله، په جهاد کې به ورسره شريک وو. مجاهدينو ته به مو اوبه رسولې، نور خدمتونه مـو ورته تر سره کول او د هغوی ټپيان او شهيدان به مو مدينې منورې ته انتقالول.

## د حدیث حکمت

د خیر ښیګڼې خپرېدو، د عدالت او انصاف تامین، له انسان څخه د انسان آزادي، له مستکبرینو څخه د مستضعفینو بوږاګانو، ښځو او ماشومانو د ژغورلو، د انساني کرامت او ارزښتونو د خوندي ساتلو او د الله ﷻ د کلمې او دین د لوړوالي په خاطر سپیڅلی او مقدس جهاد، له یوې خوا شرعي فریضه او مکلفیت دی او له بلې خوا د هر مؤمن او مسلمان وګړي د ژوندانه تر ټولو لوړه هیله او ستر ویاړ دی. ښځه د نورو مسؤولیتونو، حقوقو او ویاړ په څېر په دغې مقدسې فریضې او سپیڅلې دندې کې د خپل بدني ځواك په اندازه له نارینه وو سره سمه او برابره ونډه لري.

## د حدیث شریف ګټې

### ۱ـ د اسلام په لاره کې د وسله وال جهاد ارزښت

وسله وال جهاد د اسلام د سپیڅلي دین د خپرولو او ورڅخه د دفاع غوره لاره ده.

د الله ﷻ په لاره کې جهاد هغه غوره عبادت دی چې بل هیڅ ډول عبادت ورسره نه برابرېږي. د الله ﷻ په لاره کې یوساعت تګ د سهار له خوا او بیا بېرته راستنیدل د ورځې په اخره برخه کې له دنیا او هغه څه چې په دنیا کې دي ورڅخه غوره دي.(۱)

په اسلام کې جهاد تر ټولو د لوړ مقام او تر ټولو نېکو کارونو غوره کار دی، الله تعالی د دې لپاره روا کړی تر څو د توحید کلمه لوړه او د الله تعالی د دین برم زیات شي. ډېر زیات شمېر آیاتونه او احادیث د جهاد د فضیلت په اړه راغلي. الله تعالی فرمایي: ﴿ وَمَن يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللهِ فَيُقْتَلْ أَو يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْراً عَظِيماً﴾ [النساء: ۷٤] **ژباړه:** او څوك چې د الله ﷻ په لار کې وجنګیږي او ووژل شي یا برلاسی شي هغه ته به موږ هرومرو ستر ثواب ور په برخه کړو.

فرمایي: ﴿وَفَضَّلَ اللهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْراً عَظِيماً﴾ [النساء: ۹۵]

**ژباړه:** او الله تعالی مجاهدین په ناستو خلکو په ستر اجر سره غوره ګرځولي دي.

د اسلام ستر لارښود، رسول الله ﷺ د جهاد په اړه داسې فرمایي: «مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ الصَّائِمِ الْقَائِمِ الْقَانِتِ بِآيَاتِ اللَّهِ لاَ يَفْتُرُ مِنْ صِيَامٍ وَلاَ صَلاَةٍ حَتَّى يَرْجِعَ الْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ تَعَالَى»(۲)

---

۱ - مسلم

۲ - صحیح مسلم.

**ژباړه**: د الله تعالی په لار کې د مجاهد مثال د هغه روژه نیوونکي په څېر دی چې ټوله شپه لمونځ کوي او د الله تعالی په آیاتونو باندې دعاء کوونکی وي، نه له خپلې روژې ستړی کېږي او نه له خپل لمانځه څخه ستړی کېږي تر هغه وخته چې دغه د الله تعالی د لارې مجاهد بېرته خپل کور ته را ستون شي.

د الله تعالی په لار کې وتل او ستونزې ګالل لوی اجر او ثواب لري. رسول الله ﷺ فرمایلي دي: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ –رَضِىَ اللَّهُ عَنْهُ– قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ:« انْتَدَبَ اللَّهُ لِمَنْ خَرَجَ مُجَاهِدًا فِى سَبِيلِهِ لاَ يُخْرِجُهُ إِلاَّ إِيمَانٌ بِى وَتَصْدِيقٌ بِرَسُولِى فَهُوَ عَلَىَّ ضَامِنٌ أَنْ أُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ أُرْجِعَهُ إِلَى بَيْتِهِ الَّذِى خَرَجَ مِنْهُ نَائِلاً مَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ وَغَنِيمَةٍ ».[1]

**ژباړه**:څوک چې د مجاهد په توګه د الله ﷻ په لار کې له کوره ووځي، الله ﷻ (د مهربانۍ له مخې) فرمايي: چې کله يې دا وتل پر ما د ايمان او زما د رسول ﷺ د تصديق پر بنا وي، نو زه يې ضامن يم چې هغه جنت ته داخل کړم او يا يې بېرته خپل کور ته په داسې شان ورستون کړم چې ثواب او غنيمت ور په برخه وي.

د يادونې وړ ده چې د جهاد د مشروعيت لپاره د ځانګړو حالاتو او شرايطو تحقق ضروري دی.

**۲ ـ په وسله وال جهاد کې د ښځو ونډه**

له رسول الله ﷺ سره په غزاګانو کې، لکه د سړو په څېر ښځو هم پوره ونډه اخيستې ده دا په دې معنا چې ښځې هم له نارينه وو سره په ټولو عبادتونو، وياړونو او افتخاراتو کې سمې شريکې دي. له دې کبله ويلی شو، ښځې حق لري چې د مسلمانانو له امير څخه د اجازې تر لاسه کولو د حق د لارې د سپيڅلي جهاد وياړ تر لاسه کړي.

اسلامي شريعت د خپلې عامې مهربانۍ هغه ځانګړې سهولت له مخې، چې له ښځو سره يې په هر څه کې په پام کې نيولی، ښځې يې جګړې ته له حاضريدو څخه معاف کړې دي. دغه معافي يوازې يوه استثناء لري چې کله د مسلمانانو مشر د اړتيا له مخې فوق العاده حالت کې نفير عام ( جهاد ته عمومي وتل) اعلان کړي، بيا به ښځه هم د ميړه له اجازې پرته د جهاد ډګر ته وځي. په عامو او عادي جهادونو کې ښځه مکلفه نه ده چې د جهاد ډګر ته ولاړه شي. له دې سره سره ښځې حق لري چې د جهاد په وياړونو کې د

---

۱ – سنن کبری، بيهقي

شریکېدو په خاطر د مسلمانانو د مشر او خپل سرپرست په اجازه له مجاهدینو سره ووځي او هلته د دوی له ښځینه طبیعت سره مناسب یو شمېر خدمتونه تر سره کړي.
حقیقت دا دی چې د اسلامي دعوت له پیل څخه نیولې د دعوت په ټولو پړاوونو کې ښځې په ټولو ویاړونو کې له نارینه وو سره یو شان شریکې دي. لله الحمد په ټول اسلامي تاریخ کې یوه پیښه هم داسې نشته چې هلته ښځو د محرومیت او کموالي احساس کړی وي او یا هم نارینه وو ځان پرې لوړ او پورته ګڼلی وي، بلکې ددې په خلاف ښځې تل د نارینه وو له خوا له ځانګړي قدر، احترام او درناوي څخه برخمنې وې.
د اسلامي تاریخ په اوږدو کې د نارینه اتلانو په کتار کې خدیجه، سمیه، اسماء، ام سلیم، ام عطیه، ام حرام، خوله، عائشه، فاطمه، زینب رضي الله عنه او داسې نورې په زرګونو اتلانې دي چې یادونه یې په زرینو کرښوکې پاتې دي.
ام عماره نسیبه رضی الله عنها یوه له هغو اتلو بیبیانو څخه ده چې د اُحد په تاریخي غزا کې یې له پیغمبر څخه په سخت وخت په دفاع کې د میړانې او سرښندنې بېلګه وړاندې کړې او د تل لپاره به تاریخ ور باندې ویاړي.
حفصه رضي الله عنها له ام عطیې رضي الله عنها څخه روایت کړی چې هغې ویل: زه له پیغمبرﷺ سره په اوو(۷) غزاګانو کې شریکه وم، زه د جګړې پر وخت له بارونو او سامانونو سره پاتې شوم. مجاهدینو ته به مې ډوډۍ برابروله او د هغوی د ټپیانو درملنه مې کوله.
انس رضي الله عنه وایي: ام سلیم رضي الله عنها (دده مور)چې ژوندۍ وه نو تل به له یوې ډلې انصارو ښځو سره له رسول اللهﷺ سره په غزا کې ملګرې وه.
حشرج له خپلې پلرنۍ نیا څخه نقلوي چې هغې رضي الله عنها ویل: زه له شپږو تنو نورو ښځو سره د خیبر غزا کې له پیغمبرﷺ سره ووتم. څه وخت چې پېغمبرﷺ پوه شو ښځې هم ورسره غزا ته راغلي، نو مونږ پسې یې څوك را ولېږه او ویې غوښتو! مونږ د پېغمبرﷺ خدمت ته حاضرې شوو، نو د پېغمبرﷺ په څېره کې د قهر او غوسې نښې وې. مونږ ته یې وویل: تاسو د څه لپاره او د چا په اجازه راغلې یئ؟ مونږ ورته وویل: یا رسول الله! مونږ تاسره راووتو، مجاهدینو ته به غشي ورکوو اوبه او ستوان به ورکوو، د ټپیانو درملنه به کوو. پدې توګه به د اللهﷻ د لارې په جهاد کې خپله مرسته او کمك کوو. رسول اللهﷺ راته وویل: پورته شئ او خپلو خېمو ته ولاړې شئ. هغه وایي: بیا کله چې الله تعالی خیبر فتح کړ، نو رسول اللهﷺ له

غنیمت څخه موږ ته د نارینه مجاهدینو سره سمې برابرې برخې راکړې. حشرج صاحب وایي، ما ترې پوښتنه وکړه چې څه شی په برخه کې در ورسېدل؟ هغې وویل: مېوې.[1]

**فعالیت**

د اسلامي تاریخ په اوږدو کې د هغو مجاهدو ښځو نومونه واخلئ چې په خپلو تورو او همت یې په جهادي معرکو کې حماسې زېږولې دي.

### ۳ـ د جګړې پر مهال د ښځو رول

ښځې په جهاد کې عموما په وروستیو لیکو کې په لوژستیکي او روغتیایي چارو کې، لکه: د ټپیانو درملنه او د شهیدانو په انتقال او لېږدونه ، پخلي او اوبو رسولو کې له مجاهدینو سره مرسته کوي.

په وسله وال جهاد کې د ښځو د ونډې اخیستلو شرط دا دی چې په عملي جګړه کې به برخه نه اخلي، ابرو به یې له خطر څخه مصؤونه وي، پرده به مراعاتوي، او له سړو سره به اختلاط نه کوي که چېرې پورتنیو شرطونو تحقق نه مونده، نو بیا ښځو ته په وسله وال جهاد کې ونډه اخیستل جواز نه لري.




۱ـ د حدیث ژباړه ووایاست.

۲ـ د جګړې په مهال د ښځو رول څه دی؟

۳ـ په مسلحانه جهاد کې د ښځو د ونډې اخیستلوشرطونه ووایاست.



**کورنۍ دنده:**

له معتبر سیرت کتاب څخه د اُحد په غزا کې د نسیبې رضي الله عنها دریځونه او مواقف ولولئ او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

---

۱ ـ السنن الکبري للنسائی

# رښتینولي

عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِﷺ « عَلَيْكُمْ بِالصِّدْقِ فَإِنَّ الصِّدْقَ يَهْدِى إِلَى الْبِرِّ وَإِنَّ الْبِرَّ يَهْدِى إِلَى الْجَنَّةِ وَمَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَصْدُقُ وَيَتَحَرَّى الصِّدْقَ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللّٰهِ صِدِّيقًا وَإِيَّاكُمْ وَالْكَذِبَ فَإِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِى إِلَى الْفُجُورِ وَإِنَّ الْفُجُورَ يَهْدِى إِلَى النَّارِ وَمَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَكْذِبُ وَيَتَحَرَّى الْكَذِبَ حَتَّى يُكْتَبَ عِنْدَ اللّٰهِ كَذَّابًا ». [صحيح مسلم]

**د راوي پېژندنه**

د دغه جليل القدر صحابي نوم عبدالله د پلار نوم يې مسعود او د بنو هذيل قبيلې ته منسوب دی. شپږم شخص وو چې د اسلام په مبارك دين مشرف شو. دوه ځله يې حبشې ته هجرت کړی دی دريم ځل يې له حبشې څخه مديني منورې ته هجرت وکړ. له رسول اللهﷺ سره به تل يو ځای او ملګری وو. له دې امله د اصحابو ترمنځ په صاحب العصا، صاحب الوسادة او صاحب المطهرة [1] مشهور وو. تل به يې په ډېره خوږه لهجه د قرآنکريم تلاوت کاوه، د علم او پوهې سمندر وو، د علمي مقام تر څنګ د حق د سنګر يو غښتلی مجاهد هم وو. په بدر، اُحد، خندق او نورو ټولو غزاګانو کې يې برخه اخيستې ده، د هجرت په دوه دېرشم (۳۲)کال د حضرت عثمانؓ له شهادت څخه وروسته يې له نيمګړې نړۍ څخه رحلت وکړ.

**د ځينو کلمو معنا:**

۱ـ عَلَيْكُمْ بِالصِّدْقِ: پر تاسو رښتيا ويل لازم دي

۲ـ يَهْدِى: لارښوونه کوي

۳ـ الْبِرّ: هر ډول ښې اوغوره کړنې اوخصلتونه

۴ـ مَا يَزَالُ الرَّجُلُ: سړی تل او هميشه

۵ـ يَتَحَرَّى الصِّدْقَ: کوښښ او هڅه کوي د رښتيا ويلو

۶ـ يُكْتَبَ: وليکل شي

---

۱ـ يعني رسول اکرمﷺ ته به يې امسا په لاس کې ورکوله، تکيه او بالښت به يې ورته ايښود او د اوداسه اوبه به يې ورکولې.

۶ـ وَإِيَّاكُمْ وَالْكَذِبَ: او له درواغ ويلو څخه ځانونه وساتئ

۷ـ الْفُجُورِ: هرډول ناروا، ناوړه کار او خوی

### د حديث ژباړه

له عبد الله بن مسعودﷺ څخه روايت دی چې رسـول اللهﷺ فرمـايلي دي: پـر تاسـو رښـتيا ويل لازم دي، ځکه چې رښتيا انسان ته د نيکيو لاربښوونه کوي او نيکي انسان تـه د جنـت لاربښوونه کوي. بيشکه انسان، چې تل رښتيا وايي او د رښتيا ويلو هڅه کـوي، نـو د اللهﷻ په نزد به رښتينی وليکل شي او له درواغو ويلو څخه ځانونـه وژغـورئ، ځکـه چـې درواغ ويل سړي ته د نارواوو په لور لاربښوونه کـوي او نـاروا د دوزخ پـه لـور لاربښـوونه کـوي. ځينې وخت سړی تل درواغ وايي او د درواغو ويلو هڅه کوي، نو له دې امله د اللهﷻ پـه نزد درواغجن وليکل شي.

### د حديث حکمت

د ټولو فضايلو، غوره کړنو او خويونو بنسټ رښتيا ويـل دي. رښـتيا ويـل د ټـولنيز اخلاقـي نظام سرچينه ده او د ټولنې په وګړو کې يو په بل اعتماد راټوکوي. په درواغ ويلو سره پـه انساني ټولنه کې د بې باورۍ فضاء رامنځ ته کيږي چـې دا کـار د ټـولنې د هـر ډول فـساد لامل ګرځي. له دې امله پيغمبر ﷺ پر انسانانو رښتيا ويل لازم کړي او له درواغو څخه يـې منع کړي دي.

### دحديث شريف ګټې

#### ۱ـ د رښتيا وو حقيقت

رښتيا د حقايقو سره مطابقت تـه ويـل کيـږي او مختلـف ډولونـه لـري، لـومړی يـې پـه وينـا کـې رښتيا ويل دي، او هغـه داسـې چـې وينـا لـه هغـه څـه سـره چـې اخبـار ورڅخـه کيـږي مطابقـت ولري.

بـل د نيـت او ارادې رښـتينولي ده چـې د دې ډول رښـتينولۍ ځـای زړه ده، نـو پـر مـسلمان لازم دي چې خپل زړه تل رښتينی او د هر ډول ريا، بدګمانيو، او ناوړه نيتونو څخه پاك وساتي.

بل په کړنو کې رښتينولي: انسان به مشروع چارې ترسره کوي، چې د عقيدې او وينـا سـره يې مطابقت ولري، او هغه کارونه چې د عقيدې او شعار په خلاف وي دروغ ګڼل کيږي.

**۲ـ د رښتیا ویلو کوښښ**

انسان باید د ژوند په ټولو حالاتو کې تل رښتنی واوسي او هڅه وکړي چې رېښتینولي د ځان عادت وګرځوي، تر څو الله جل جلاله ورڅخه خوښ شي او هم یې نوم د صدیقینو په ډله کې ولیکي اوجنت ته یې داخل کړي.

**۳ـ د رښتیا ویلو ګټې**

ریښتیا ویل ډېرې دنیوي او اخروي ګټې لري چې ځینې یې په لاندې ډول دي

- رښتیا ویل انسان د نیکیو لور ته وړي او له هر ډول بدیو څخه یې ژغوري.
- رښتیا ویل زړه ته ډاډېنه او آرامي وربښي.
- رښتیا ویل مؤمن له منافق څخه جلا کوي.
- رښتیا ویل په دنیا او آخرت کې انسان ته نجات ورکوي.
- رښتیا ویل د الله جل جلاله د خوښۍ لامل ګرځي.
- رښتیا ویل جنت ته د داخلیدو لویه ذریعه ده.
- رښتیا ویل انسان ته د خیر او برکت دروازې پرانیزي ،او رزق یې پراخوي.

**۴ـ د درواغو حقیقت**

درواغ د رښتیا ضد او د حقیقت پر خلاف د معلوماتو وړاندې کولو ته ویل کیږي.
درواغ لکه څرنګه، چې په ژبه وړاندې کیږي، همدا راز د کړنې، نیت او ارادې له لارې هم تر سره کیدای شي. لکه یوڅوک د بدکار د انجامولو اراده ولري او په ژبه د هغې پر خلاف وینا وړاندې کړي، په دې صورت کې ده خپل عمل او اراده پر ژبه دروغجنه وړاندې کړه.

**۵ـ درواغ ویل لویه ګناه ده**

درواغ ویل داسې عمل دی چې د اسلام د سپېڅلي دین څخه سربېره په ټولومذهبونو او ادیانو کې یوه ناوړه پدیده ګڼل شوې ده. د اسلام مبارک دین د درواغو ټول ډولونه حرام کړي دي او درواغجن انسان ته یې درنده سزا ټاکلې ده نولازمه ده چې د هر ډول درواغو څخه ځانونه وژغورو، څوک چې درواغ وایي او یا د درواغ ویلو هڅه کوي

الله ﷻ یې بد ګڼي په درواغ ویلو د بنده خوی ګرځي او د الله جل جلاله په نزد د درواغجنو په ډله کې شمېرل کيږي.

## ۶ـ د درواغو بدې اغیزې

درواغ ویل ډیرې بدې پایلې لري چې ځینې یې په لاندې ډول دي

- درواغ ویل د ټولو بدیو اصلي عامل او د منافقت یوه برخه ده.
- درواغ ویل د نورو حقوق له منځه وړي.
- درواغ د انسان شخصیت بې ارزښته کوي.
- درواغ په ټولنه کې بې اعتمادي رامنځ ته کوي او د باور ټغر ټولوي.
- درواغ د بلې هرې ګناه تکیه ګاه ده.
- د درواغو له کبله انسان د جهنم کندې ته لوېږي.




۱-لاندې کلمې معنا کړئ:

**الْبِرِّ:**

**مَا يَزَالُ الرَّجُلُ:**

**يَتَحَرَّى الصِّدْقَ:**

**يُكْتَبَ:**

۲ـ دحدیث ژباړه ووایاست.

۳ـ رښتیا ویل څه ګټې لري؟

۴ـ دروغ څه بدې پایلې لري؟

# د مجلس آداب

عَنْ عبدالله بْنِ عُمَرَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَنَّهُ نَهَى أَنْ يُقَامَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ وَيَجْلِسَ فِيهِ آخَرُ وَلَكِنْ تَفَسَّحُوا وَتَوَسَّعُوا). [صحيح البخاري]

**د ځينو عبارتونو معنا**

۱ـ أَنْ يُقَامَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ: چې يو څوک د ناستې له ځای څخه پاڅول شي.

۲ـ وَيَجْلِسَ فِيهِ آخَرُ: او بل څوک په هغه ځای کې کښېني.

۳ـ وَلَكِنْ تَفَسَّحُوا: مګر په خپلو منځوکې پراخي راولئ.

۴ـ وَتَوَسَّعُوا: او د ځای پراخي راولئ.

**د حديث ژباړه**

له حضرت عبد الله بن عمر رضي الله تعالى عنهما څخه روايت دی، پيغمبر صلى الله عليه وسلم له دې څخه منعه کړې ده چې يو څوک له خپل ځای څخه پاڅول شي او بيا پر ځای يې بل څوک کښيني، بلکې په خپلو منځوکې فاصله راولئ او خپل مجلسونه پراخه کړئ.

**د حديث حکمت**

د اسلام مقدس دين د ژوند هر اړخيز نظام وړاندې کړی. ستر او واړه ټول موضوعات يې پوښلي، آن د مجلس د آدابو وړه برخه يې هم پټه پرېښې نه ده، بلکې د هغې لپاره يې هم لارښوونې بيان کړې، په اسلام کې ټولو انسانانو ته د احترام په نظر کتل کېږي، ټول مساوي حقوق لري، هر راز توپيرونه ردوي، يوازې تقوا د توپير او لوړتيا معيار دی. له دې کبله امر شوی چې څوک له خپل ځای څخه اوچت نه کړای شي او ناست خلک يا حلقه سره پراخه کړي او يا سره نژدې شي او نويو راغلو خلکو ته ځای ورکړي، څو ټول مسلمانان په مجالسو کې با وقاره وساتل شي. هيڅوک د کمۍ احساس ونه کړي او له دې سره سره څوک د مجلس له ګټو څخه هم بې برخې نه شي او په مجلس کې ځای ورکړ شي.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د مجلس نور آداب ووايي.

## د حديث شريف ګټې

### ۱ـ د مجالسو ډولونه

انسان دې ته اړ دی چې له نورو سره ناسته ولاړه ولري، په مجالسو کې برخه واخلي. مجالس به له لاندې ډولونو څخه خالي نه وي

**اـ نیک مجلسونه:** لکه د پوهانو او علماوو سره ناسته، د علم د زده کړې حلقې او د وعظ او نصیحت مجلسونه چې د انسان په ژوند کې خورا ارزښت لري بايد داسې مجلسونه غنيمت وګڼل شي او پکې ونډه واخيستل شي.

**ب ـ بد مجلسونه:** دا هغه مجلسونه دي چې په کې ناکاره خلك راټول شوي وي يا په کې غيبت کېږي يا په کې درواغ ويل کېږي او يا نور د فساد تصميمونه پکې نيول کېږي له داسې مجلسونو څخه ډډه کول لازم او که څوك پکې ناست وي بايد ورڅخه پاڅېږي.

**ج ـ مباح مجلسونه:** دا هغه مجلسونه دي چې د پورتنيو منکراتو څخه خالي وي، خو کوم دنيوي يا اخروي خير هم په کې نه تر سترګو کېږي په دغه ډول مجالسو کې اشتراك کول کوم باك نه لري، خو غوره دا ده چې پکې ګډون ونه شي، ځکه چې وخت په کې ضايع کېږي.

### ۲ـ په مجلس کې ناست کس له خپل ځای څخه پاڅول ناروا کار دی

که څوك مجلس ته داخل شي، ده ته دا جايز نه دي چې بل څوك پاڅوي او دی د هغه پر ځای کېښيني، ځکه دا د متکبرينو عادت دی، او اسلام منعه کړی دی. له بل پلوه په دې کړنه کې د نورو سپکاوی او پرحقوقو يې تېری کول دي. د اسلام ستر پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: "مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَتَمَثَّلَ لَهُ الرِّجَالُ بَيْنَ يَدَيْهِ قِيَامًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ". [۱]

---

۱ – سنن ترمذی.

**ژباړه:** څوك چې دا خوښوي چې خلك يې په مخ كې ولاړ وي، نو دی دې په جهنم كې د ځان لپاره ځای تيار كړي.

**۳ـ د مجلس پراخول**

كه څوك له بهر څخه مجلس ته ورداخل شي او په مجلس كې دده د كيناستو ځای نه وي، نو مجلس كې په ناستو كسانو لازم دي چې په مجلس كې پراخي راولي او ده ته د كېښناستو ځای وركړي. الله جل جلاله فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوا فِي الْمَجَالِسِ فَافْسَحُوا يَفْسَحِ اللَّهُ لَكُمْ...﴾ [المجادلة: ١١]

**ژباړه:** ای مؤمنانو كله تاسې ته وويل شي چې پراخه كړئ مجلسونه، نو بيا پراخي په كې راولئ. الله جل جلاله به پرتاسې پراخي راولي.

**۴ـ مجلس ته د سلام په اچولو سره داخليدل**

مجلس نور آداب هم لري او په مختلفو احاديثو كې ذكر شوي دي چې د هغې له جملې څخه مجلس ته د داخليدو پر وخت د سلام اچول دي. پېغمبر صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: «إِذَا انْتَهَى أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَجْلِسِ فَلْيُسَلِّمْ»[۱]

**ژباړه:** كله چې له تاسې څخه څوك مجلس ته داخلېږي بايد سلام واچوي.

**۵ـ د مجلس په آخر كې كيناستل**

كه څوك مجلس ته راشي، نو بايد هلته كښيني چيرې چې د ناستو خلكو پای وي او د مجلس منځ او يا سرته د تيريدو كوښښ دې ونه كړي. حضرت جابر بن سمرة (رضي الله تعالى عنه) فرمايي: «كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا النَّبِيَّ ﷺ جَلَسَ أَحَدُنَا حَيْثُ يَنْتَهِي».[۲]

**ژباړه:** كله به چې موږ د پېغمبر صلى الله عليه وسلم مجلس ته راغلو، نو زموږ هريو به هلته كيناسته چيرې به چې د مجلس آخري برخه وه.

**۶ـ د دوو خبرو اترو كوونكو تر منځ كيناستل نه دي په كار**

كه څوك په مجلس كې د ناستې اراده لري، نو بايد د دوو داسې كسانو ترمنځ ځان ځای نه كړي چې هغوی په خپلو كې خبرې اترې سره كوي، تر څو د هغوی خبره او رابطه

---

[۱] – سنن أبی داود.

[۲] – سنن أبی داود.

غوخه نه شي. ځکه دا کار د نفرت او کرکې لامل ګرځي. پېغمبر (صلی الله علیه وسلم) فرمايلي دي: «لاَ يَحِلُّ لِرَجُلٍ أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَ اثْنَيْنِ إِلاَّ بِإِذْنِهِمَا».[1]

**ژباړه:** چا ته دا جايز نه ده چې د دوو کسانو تر منځ بېلتون راولي، مګر دا چې د هغوی په اجازه وي.

**۷ـ که څوک د کوم حاجت له مخې له خپله ځايه پاځېږي د بيا راتلو په صورت کې په خپل ځا ی کې د کيناستو حق لري**

پېغمبرﷺ فرمايلي دي: «مَنْ قَامَ مِنْ مَجْلِسِهِ ثُمَّ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ».[2]

**ژباړه:** څوک چې له خپل ځای څخه پاڅيده او بيا خپل ځای ته راغی، نو هغه په خپل ځای د ناستې د لومړيتوب حق لري.




۱ـ لاندې عبارتونه معنا کړئ:

**أ. أَنْ يُقَامَ الرَّجُلُ مِنْ مَجْلِسِهِ**

**ب . وَيَجْلِسَ فِيهِ آخَرُ**

**ج . وَلَكِنْ تَفَسَّحُوا:**

۲ـ د حديث مفهوم په يادو زده کړئ.

۳ـ د مجلس هغه آداب ووایاست چې د حديث الفاظ پرې دلالت کوي.

---

[1] ـ سنن ترمذی.

[2] ـ صحيح مسلم.

# د فقهې د اصولو پېژندنه

منل شوي علمي مېتودونه غوښتنه كوي مخكې له دې چې د يو علم جزئيات زده كړو؛ په كار ده چې د هغه موضوع، موخه او له نورو علومو سره يې تړاو وپېژنو په دې لوست كې تاسې ته همدا مطالب په تفصيل سره وړاندې كوو.

**د فقهې د اصولو پېژندنه**

د «فقه د اصولو» پېژندنه په دوه ډوله سره وړاندې كېږي، « د فقهې اصول» د دوو كلمو څخه د مركب لفظ په توگه او « د فقهې اصول» د ځانگړې علم د نوم په توگه

**« د فقهې اصول» د دووكلمو څخه د مركب لفظ په توگه**

د فقهې اصول له دوو كلمو څخه جوړ شوى تركيب دى يو يې " فقه" او بل يې "اصول" دي.

(اصول) د عربي ژبې له مخې د اصل جمع دى چې بنسټ او بنياد ته وايي.

(فقه) په لغت كې د پوهې او ځيركتيا په معنا ده او په اصطلاح كې په شرعي احكامو باندې داسې پوهې ته ويل كېږي چې له دلايلو څخه راوتلې وي، لكه چې يو څوك وپوهېږي چې د لمانځه لپاره اودس شرط دى، څكه چې الله تعالى فرمايلي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ [المايدة: ۶]. په دې آيت كې د درېو اندامونو په وينځلو او د يو اندام په مسح امر شوى او امر د فرض توب غوښتنه كوي، نو اودس د لمانځه لپاره فرض او شرط دى.

فقه داسې پوهه ده، خو كه يو څوك يوازې د خپل كلي له امام څخه واوري چې اودس فرض دى او بې اودسه لمونځ نه كېږي، نور يې په دليل پوه نه شي داسې پوهې ته فقه نه ويل كېږي.

له علم څخه په دې ځاى كې مراد راجح باور دى چې ظن او يقين دواړو ته ورشاملېږي.

**شرعي احكام:** د مكلفينو د شرعي افعالو صفتونو ته شرعي احكام ويل كېږي، لكه فرض، واجب، مستحب، مباح، مكروه او حرام.

لكه چې ويل كېږي: رښتيا په وينا كې واجب او دروغ حرام دي.

## د فقهې د اصولو پېژندنه دځانګړي علم په توګه

له هغه علم څخه عبارت دی چې په اجمالي توګه د فقهې دلایل، له هغو څخه د استفادې لارې چارې او د مجتهد صفات څرګندوي[1].

کله چې مو پر دې تعریف ته ښه ځیر شو درې لویې معناوې پکې پرتې دي.

۱- د فقهې اصول په اجمالي توګه د فقهې دلائل (قرآن، سنت، اجماع او قیاس) بیانوي، په تفصیلي توګه له هر آیت، حدیث ... څخه بحث نه کوي.

۲ــ د فقهې د اصولو علم له همدې دلایلو څخه د شرعي احکامو د راوېستلو څرنګوالی راښیي، هغه قواعد بیانوي چې په زده کړه یې، له دلایلو څخه د احکامو استنباط آسانه کېږي.

۳ـ د فقهې د اصولو علم د مجتهد صفات او وړتیاوې بیانوي.

## د فقهې د اصولو موضوع

د فقهې د اصولو موضوع شرعي دلایل، اصولي قواعد او شرعي احکام دي.

شرعي دلائل په دوه ډوله دي

۱ــ متفق علیها دلایل چې هغه قرآن، سنت، اجماع او قیاس دي.

۲ــ اختلافي دلایل چې ډېر ډولونه لري. مهم یې په لاندې ډول دي:

- استحسان
- د صحابي مذهب
- مرسله مصالح
- استصحاب
- عرف(دود)

د فقهې د اصولو عالمان له دې دلایلو څخه په اجمالي توګه بحث کوي، د هغوی پېژندنه کوي، حجیت، د طلب ډولونه او ورڅخه د استنباط لارې چارې اصول بیانوي او د دوی په خپل مینځ کې مراتب او د تعارض په صورت کې د ځینو په نورو د ترجیح قواعد څېړي.

---

(۱) المنهاج : للبیضاوي

**د فقهې د اصولو د علم د لوستلو موخه**

د دې علم د زده کړې موخه له شرعي مصادرو (قرآن، سنت، اجماع او قياس) څخه د احکامو د راوېستلو لارې چارې پېژندل دي، په داسې بڼه چې شرعي احکام د علمي اصولو او ضوابطو پر اساس راوايستل شي، د بشري هوا هوس او مزاجونو څخه اغېزمن نه شي، ځکه هر شرعي حکم قرآن، سنتو، اجماع او قياس ته تکيه کوي، يا به په صراحت په هغو کې راغلي وي او يا به ورڅخه استنباط شوى وي. دا استنباط هر څوك سر ته نشي رسولاى او نه په دې هکله د هر چا سليقوي تفسير او پوهه اعتبار لري، بلکې د شرعي احکامو استنباط ځانګړي اصول لري چې په همدې علم کې بيان شوي.

همدا ډول د دې علم په زده کړه شخص کولاى شي چې د فقهاوو د مذاهبو له دلايلو څخه خبر شي، د هغوى د استدلال لیارې وپېژني، او د مختلفو مذاهبو په لاملونو باندې ځان پوه کړي چې ولې يې داسې نظريات وړاندې کړي.

همدارنګه د احکامو بدلون د حالاتو او وخت په بدلون باندې د دې علم په وسيله پېژندل کېږي، همدا علم دى چې فقهي او قانوني ستونزو ته د حل مناسبې لارې را پيدا کوي او نويو پېښيدونکو مسايلو ته (هغه چې پخوا نه دي پېښې شوي) احکام راوباسي.

د دې علم په واسطه شخص د قرآن او سنتو په پوهه کې تثبت او پوخوالى تر لاسه کوي.

**د فقهې د اصولو تړاو د فقهې له علم سره**

د فقهې په علم کې مسلمان خپل مکلفيتونه او مسؤليتونه د خپل پروردګار، ټولنې او چاپېريال په وړاندې پېژني، چې څه شى د ده لپاره دى او څه پرې لازم دي، په دې توګه د اصولو د علم تړاو د فقهې له علم سره داسې دى لکه د ونې د بېخ تړاو له ښاخونو سره يا د بنسټ (تهداب) تړاو له ودانۍ سره. د فقهې اصول په شرعي دلائلو باندې د پوهې لپاره اساسي ضوابط او قواعد بيانوي، شخص ته د فقهي احکامو د استنباط لار پرانيزي او د دې وړ يې ګرځوي چې د وضع شويو قواعدو په رڼا کې د شرعي دلائلو څخه احکام راوکاږي.

کله چې مونږ غواړو د لمانځه حکم له دليل څخه وپېژنو، د څو مقدمو پېژندلو ته اړتيا لرو:

۱ـ د شرعي احکامو پېژندل.

۲ـ د شرعي دلايلو (قرآن، سنت، اجماع او قياس) اجمالي پېژندنه.

۳ـ له دې دلايلو څخه د حکم د راويستلو لارو چارو پېژندنه.

٤ـ د دې پېژندنه چې د يو څه غوښتل د امر په صيغې (وکړه) سره ترسره کېږي.
٥ـ مطلق امر چې د اباحت نښه پکې نه وي، د وجوب لپاره دی.
دا ټولې مقدمې د فقهې د اصولو د علم موضوعات دي.
له دې مقدمو وروسته قرآن ته ورګرځو، په قرآن کريم کې د لمانځه موضوع لټوو، له پلټنې وروسته دا آيت پيدا کوو چې الله تعالى فرمايلي: ﴿اقيموا الصلاة﴾ يعنې لمونځونه سم اداء کړئ دا هغه مطلق امر دی چې له موږ نه د لمانځه کولو غوښتنه کوي او مونږ په دې پوهېږو چې لمونځ فرض دی. دا وروستې پوهه فقه ده، نو ويلای شو چې د فقهې اصول د فقهې د علم اساس دی او هغه فورمولونه دي چې په واسطه يې له قرآن، سنتو، اجماع او قياس څخه فقه راويستلای شو.

**فعاليت:**

بيا همغه ذکر شوي محسوس مثال ته رجوع وکړئ.

د فقهې اصول علم = د درزي توب پوهه.

او د نجارۍ سره هم د فقهې اصول پرتله کړئ.




١ـ د فقهې اصول له دوو کلمو څخه د مرکب لفظ او د ځانګړي علم د نوم په توګه راوپېژنئ.
٢ـ د فقهې د اصولو د علم موضوع څه شی ده؟ د څلورو اتفاقي او ځينو اختلافي دلايلو نومونه واخلئ.
٣ـ د اصولو د علم له لوستلو څخه موخه څه ده؟
۴ـ د فقهې د اصولو د علم اړيکې د فقهې له علم سره د مثال په ترڅ کې بيان کړئ.

# د فقهې د اصولو د علم پیدایښت او پراختیا

په تېر لوست کې مو د فقهې د اصولو تعریف ، موضوع، موخه او له فقهې سره د دې علم اړیکه وپېژنده، په دې لوست کې موږ د دې علم له پیدایښت او پراختیا څخه بحث کوو او دې علم ته زموږ اړتیا لولو. له هر څه مخکې اړینه ده چې د اسلام د لومړي پړاو د مسلمانانو وضعیت د دیني مکلفیتونو د پېژندلو په هکله معلومات ترلاسه کړو او په دې ځان پوه کړو چې دوی د قرآن او سنتو په معنا او غوښتنو څنګه پوهېدل؟ او اجماع او قیاس په څه ډول مینځ ته راغلل؟

**له قرآن کریم او سنتو څخه د صحابه کرامو فهم**

د شرعي احکامو لومړی مصدر قرآن کریم دی. مسلمانان د قرآن کریم په واسطه د خپلې عقیدې او شرعي مکلفیتونو سره برخه پېژني، چې د څه لپاره پیدا شوی او څه باید وکړي. رسول اکرمﷺ قرآن کریم په خپلو اقوالو، افعالو او تقریراتو سره تفسیر کړی.

قرآن کریم د عربو په ژبه نازل شوی، نو هغه چا چې د قرآن کریم د نزول په زمانه کې ژوند کاوه، د قرآن کریم په مفهوم پوهېدل، همدا راز د نبي کریمﷺ په خبرو داسې پوهېدل، لکه څنګه چې موږ او تاسو د خپلو ملګرو په خبرو پوهېږو، پرته له دې چې د ژبې او اصولو قواعد په کتابونو کې ورته وګورو.

کله چې له موږ څخه ښوونکی یا پلار د کوم کار د کولو یا نه کولو غوښتنه وکړي، د دوی د غوښتنې په ډول پوهېږو چې آیا ټینګه غوښتنه کوي او که سطحي، ایا په نه کولو یا کولو یې راته جزا راکوي او که نه؟ دا پرته له دې تشخیصه چې د دې غوښتنې ډول وپېژنو چې واجب ده که مستحب، مکروه ده که حرام. د لومړني نسل مسلمانان هم همدا راز وو. دوی د قرآن کریم په معنا پوهېدل د رسول اللهﷺ د خبرو څخه یې مطلب اخیسته پرته له دې چې د ژبې او اصولو په قواعدو پوه شي.

کله به چې کومه پېښه رامنځ ته کېده رسول الله ﷺ د دوی په منځ کې موجود وو. د الله‌تعالی په حکم یې ورته حکم کاوه، دوی به د حکم د ټینګار درجه له وینا او د موجودو نښو نښانو څخه پېژندله. په ځینو چارو به یې امر ورته کاوه، له ځینو څخه به یې منع کول، د ځینو چارو لور ته به یې ترغیبول. داسې ډېر لږ پېښېدل چې د کړو وړو په شرعي صفاتو باندې تصریح وشي او وویل شي چې دا ځیزونه فرض، سنت، مباح، مکروه یا حرام دي.

**د اسلامي قلمرو له پراختیا څخه وروسته د احکامو استنباط**

څه موده وروسته، کله چې د مسلمانانو د فتوحاتو لمن وغځېده او ډېر عجمي ملکونه په اسلامي قلمرو کې راغلل، دوی په عربي ژبه نه پوهېدل، نو دې ته اړتیا پیدا شوه څو د عربي ژبې د زده کړې لپاره هغه قواعد کېږدي، چې د عقل او دود څخه اخیستل شوي وو، ترڅو خلك د خدای ﷻ او رسول په مراد پوه شي. په همدې وخت کې د فقهې د اصولو علم وټوکېده.

**د اجماع پیدایښت**

کله چې رسول الله ﷺ رحلت وکړ، د ده امت په ځینو مسائلو اجماع وکړه. د رسول الله ﷺ د وینا مطابق: د ده امت په خطا نه سره یو ځای کېږي. په دې مهال اجماع د شرعې د مصادرو د دریم مصدر په توګه رامنځ ته شوه.

**په قیاس کې پراخوالی**

کله چې د اسلامي قلمرو دایره پراخه شوه، داسې نوي مسایل پیدا شول چې د رسول الله ﷺ په زمانه کې نه وو پېښ شوي. په قرآن او سنتو کې یې په صریح ډول حکم نه موندل کېده، نو د امت فقهاوو له قرآن، سنت او اجماع څخه د احکامو په راویستلو کې اجتهاد وکړ. په داسې توګه چې نوي مسایل یې په منل شویو ثابتو مسایلو قیاس کړل او په دې توګه د قیاس په نوم د شرعي احکامو څلورم مصدر رامنځ ته شو.

**د اصولو د علم پیدایښت**

له قرآن او سنتو څخه په استنباط د اجماع په حقیقت او د قیاس په څرنګوالي کې د صحابه وو له پېړۍ څخه اختلاف راشروع او د وخت په تېریدو او د نویو مسایلو په زیاتېدو دې اختلاف علمي بڼه غوره کړه. د هجرت په دویمه پېړۍ کې علماوو د احکامو د استنباط اصول وضع کړل او د فقهې د اصولو نوم یې ورباندې کېښود.

**د فقهې اصولو علم ته اړتیا**

کېدای شي څوك ووایي د اصولو علم ته د دې لپاره اړتیا نشته چې د اجتهاد دروازه تړلې ده او د فقهې اصول په اجتهاد کې کارول کېږي، خو څېړونکي عالمان وایي: د اجتهاد دروازه به د قیامت تر ورځې پورې د څه شرایطو لاندې خلاصه وي. اجتهاد د اصولو علم ته اړتیا لري نو د امت د ځینو علماوو لپاره د دې علم زده کړه لازمي ده، تر څو خلکو ته د هغوی مکلفیتونه په ګوته شي.

کله چې علماوو د اجتهاد د دروازې د بندېدو فتوا ورکړې، په شرعي مسايلو کې يې د ځينو جاهلانو جرأت ته کتلي. پرته له دې چې هغوی د اجتهاد ځانګړتياوې ولري، د اجتهاد دعواوې به يې کولې.

هغه څوك چې د اجتهاد مرتبې ته نه وي رسېدلی، د هغوی لپاره هم د دې علم پېژندل ګټور دي، ځکه د امامانو د اقوالو مأخذونه او د دوی د مذهبونو بنسټونه پېژني، د اصولو د علم په زده‌کړه د هغوی د اقوالو تر مينځ پرتله او د دوی په منهجونو او لارو نوي مسايل تخريج کولای شي.

په دې توګه ويلای شو له دې علم څخه د اسلامي شريعت په هکله په دريو عمده برخو کې ګټه اخيستل کېدای شي.

۱ـ هغه احکام چې د وخت او ځای په بدلون بدلېږي، که څه هم د پخوانيو فقهاوو نظريات پکې موجود وي، خو د وخت په تېرېدو نويو احکامو ته هم اړتيا ليدل کېږي.

۲ـ هغه نوي مسايل چې پخوا مطرح نه وو، لکه بانکونه، د شرکتونو ځينې ډولونه، ځينې طبي پوښتنې او نور، داسې مسايل هم نويو احکامو ته اړتيا لري.

۳ـ د مخکينيو فقهاوو د نظرياتو ترمنځ پرتله او په هغو کې حق ته نژدې نظر پيدا کول هم د فقهې د اصولو په علم ترسره کېږي.

**د وضعي قوانينو پوهان هم د اصولو علم ته اړتيا لري**

لکه څنګه چې د شرعي احکامو پوهان د اصولو علم ته اړتيا لري همدا ډول د وضعي قوانينو پوهان هم د اصولو علم ته اړتيا لري. هغه اصول او قواعد چې په دې علم کې لوستل کېږي، لکه قياس او د هغه اصول، د نصوصو د تفسير قواعد، په معانيو باندې د الفاظو د دلالت لارې چارې او د مختلفو دلايلو ترمينځ د تعارض په صورت کې د هغوی تر مينځ ترجيح دا ټول د وضعي قوانينو دپوهانو په کارېږي. تر څو چې وربانديې پوه نه شي په خپل مسلك کې بريالی کيدای نه شي.

له همدې امله د شرعياتو او حقوقو په پوهنځيو کې د اصول فقهې مضمون لوستل کېږي. که قاضي، وکيل او يا د قانون استاد اصول فقه ولولي، په خپله دنده کې به برلاسی وي.

**فعالیت**

آیا داسې پېښه مو یادیږي چې کومه منازعه، جنجال د دوو معامله دارانو تر مینځ د عقد د الفاظو له تفسیر څخه راټوکېدلې وي؟

که نه دریادیږي، نو کوښښ وکړئ چې په خپل خیال کې داسې یو جنجال راجوړ کړئ، بیا یې په خپله کتابچه کې ولیکئ او نورو ته یې واوروئ. له لاندې مثال څخه ګټه واخلئ.

مثال: اشرف کریم ته وویل: زه دا موټر په سل زره افغانۍ دربانـدې پلـورم، کـریم وویـل: زه یې قبلووم، کله چې کـریم د هغـه د تـسلیمولو غوښـتنه وکـړه، اشـرف وویـل: زمـا مقـصد پـه راتلونکې وخت کې وعده کول وو، ځکه مې د مضارع لفظ کـارولی. زه عقـد پـوره نـه ګـڼم، په راتلونکې کې مې که زړه شو موټر به دربانديې وپلورم او که نه، نه یې دربانديې پلورم.

**د اصول د فقهې د علم د پراختیا مرحلې**

د فقهې د اصولو علم د خپلې پراختیا په جریان کې له مختلفو مرحلو څخه تېر شوی، چې په لاندې توګه بیانیږي:

**اصول فقهې د اسلام په لومړي دور کې**

کله چې موږ د رسول اللهﷺ ژوند مطالعه کوو، داسې څه پکې پیـدا کېـږي چـې هغـهﷺ د صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین اجتهاد تاییـد کـړی. پـه یـو حـدیث شـریف کـې راغلي چې کله رسول اللهﷺ معاذ بن جبل یمن ته استاوه، ورته یـې وفرمایـل: کلـه چـې لـه کومې قضایې پېښې سره مخامخ شې څه به کوې؟ معاذؓ ورته وویل: زمـا پرېکـړه بـه پـه قرآن کریم وي، پېغمبرﷺ ورته وفرمایل: که پر قـرآن کـریم کـې ونـه مونـدل شـي. ویـې ویل: د رسول اللهﷺ په سنتو به فیصله کوم، بیا یې ورته وفرمایل: که په سـنتو کـې دې ونـه مونده، ځواب یې ورکړ: بیا به اجتهاد کـوم او کمـی بـه پکـې نـه کـووم، معـاذ رضـي الله تعالی عنه ویلي: رسول اللهﷺ زما سینه وټپوله او بیا یې وفرمایل:

«ټوله ستاینه هغه اللهﷻ لره ده، چې د رسول الله استازی یې پـر هغـه څـه بریـالی کـړ چـې رسول الله یې خوښوي»[(۱)]

---

۱ دا حدیث د خلکو په ژبو مشهور دی، امام ابن القیم په خپل کتاب (اعلام الموقعین ) تحقیق پکـې کـړی او د شـهرت لـه کبله او همدار راز د خلکو د منلو له امله یې اعتباري ګڼلی او ویلی یې دي: په ځینو طرقو کې یې سـند متـصل دی. (إعـلام الموقعین جـ ۱ ص ۲۰۲).

د مسلمانانو دويم خليفه عمرﷺ ابو موسٰی الاشعري ته يو ليك استولی چې په هغې کې د خلکو ترمنځ د پرېکړې بنيادونه ذکر شوي، چې د تل لپاره د قضاء د اصولو لپاره اساسي مرجع ده. په دې کې ليکي: په هغو مسايلو کې چې ورکې زړه نـازړه شـې او پـه قـرآن او سنتو کې نه وي، ځان ښه وربانديې پوهوه هغو ته ورته مثالونه پېژنه، بيا چارې يـو پـر بـل قياس کوه، چې الله جَلَّ جَلَالُهُ ته خوښه او حق ته نژدې درته ښکاره شي هغه پلې کوه.

دا دواړه اثره په ښکاره د اجتهاد قواعد بيانوي او تائيد يې کوي، حـال دا چې اجتهـاد د اصول فقه مغز دی او دا علم په اجتهاد راڅرخېږي.

**د فقهې د اصولو علم د تابعينو په زمانه کې**

دې دور کې د پېښو او واقعاتو د ډېروالي له امله اجتهاد هـم ډېـر شـو، داسـې خلـك پيـدا شول چې يوازې په علم او فتوا بوخت وو. لکه سعيد ابن المسيب، ابـراهيم النخعـی، عطـاء بن ابي رباح او داسې نور رحمهم الله تعالی، دوی ټولو په يوه مسأله کـې د ښـکاره نـص د نه موجوديت په صورت کې ځانګړې لارې چارې درلودلې، له قيـاس، مـصالحو او داسـې نورو وسايلو څخه يې کار اخيست.

**د فقهې د اصولو علم د مجتهدينو امامانو په زمانه کې**

د دويمې پېړۍ له پيل څخه وروسته د اجتهاد ميتودونه، پـه ښـکاره بڼـه يـو تـر بلـه ګوښـې شول، د هر امام د استنباط قواعد د هغه په ذهن کې واضح وو چې د هغـو پـه رڼـا کـې بـه يې اجتهاد کاوه، لکه امام ابوحنيفه رحمه الله (۸۰ هـ ـ ۱۵۰ هـ) چې په اجتهـاد کـې بـه يـې لومړی په قرآن، بيا په سنتو تکيه کوله. که حکم به يې په هغو کې ونه موند، د صحابه وو فتاواوو ته به يې رجوع کوله، د هغوی تـر مينـځ اتفـاقي مـسايلو څخـه نـه تېرېـده او کـه د دوی ترمينځ به اختلاف وو، نو په هغو کې به يـې يـو نظـر غـوره کـاوه. د دوی لـه وينـاوو پرته يې د تا بعينو په نظريو ځان پابند نه ګاڼه. ځکه هغه يې هم د ځان پـه څېـر بلـل.که د کوم يوه نظر به يې خوښ شو، نو هغه به يې اخيسته او که نه، د قرآن او سنتو پـه رڼـا کـې به يې په خپل نظر عمل کاوه.

همدا راز امام مالك رحمه الله تعـالی (۹۳ ـ ۱۷۹هــ) د شـرعي احکـامو پـه استنباط کـې خپل اصول او ضوابط درلودل، چې له قرآن او احاديثو څخه يې وروسته د مـدينې منـورې د خلکو عمل ته اعتبار ورکاوه. د مدينې د خلکو عمل د ده په نظر حجـت و او لـه هغـې

څخه مخالفت ته يې جواز نه ورکاوه. همدا راز مرسله مصالح هم د نورو علماوو په نسبت د امام مالك رحمة الله تعالى په نزد زيات معتبر ګڼل شوی.

په دې توګه په دې پېړۍ کې ډېر فقهاء کرام موجود وو چې په اجتهاد کې يې ځانګړې تګلارې او اصول درلودل او په هغو روان وو، خو د دوی د تګلارو معيارونه په ځانګړي کتاب کې نه وو راټول شوي.

دا لړۍ همدا شان روانه وه چې بيا امام شافعي رحمة الله تعالى (۱۵۰ _ ۲۰٤هـ) راغی. ده د فقهې په اصولو کې لومړی کتاب د (الرسالة) په نوم وليکه. په دې کتاب کې د دې علم اړونده دقيقې قضيې په ښه توګه بيان شوي چې د اصـولو د علـم تر ټولـو پخوانی کتـاب شمېرل کېـږي او پر نورو اصولي موضوعاتو سربېره اوامر، نـواهي، بيـان، خبـر، نـسخه او د قياس د منصوصې علت حکم پکې څېړل شوی.[1]

**فعاليت:**

يو زده کوونکی دې د امام ابوحنيفـه، بـل دې د امـام مالـك او دريـم دې د امـام شـافعي رحمة الله تعالى په هکله لنډ معلومات ورکړي.




۱ـ صحابه په قرآن او سنتو څنګـه پوهېـدل؟ آيـا د فقهـې د اصـولو د علـم پـه واسـطه يـې احکام ورڅخه راويستل او که په خپل ذوق او سليقه؟

۲ـ د اسلامي قلمرو له پراخېدو وروسته د احکامو په استنباط کې څه بدلون راغی؟

۳ـ اجماع څه مهال رامنځته ته شوه؟ او قياس څنګه پراخه شو؟

۴ـ د اصولو علم څنګه راپيدا شو؟

۵ـ د اصولو علم ته په کومو برخو کې اړتيا ده او څه ګټه لري؟

۶- داسې يو حديث ووایاست چې د اجتهاد په اصولو او روا والي دلالت کوي.

۷- د حضرت عمر رضي الله عنه د هغه ليك لنډيز وليکئ چې ابو موسٰی الاشعري ته يې استولی وو.

۸- د مجتهدينو امامانو د اجتهاد د اصولو په هکله خپل لنډ معلومات وليکئ.

۹- د فقهې د اصولو لومړنی کتاب څه نومېږي، چا ليکلی او څه شی پکې څېړل شوي؟

(۱)مقدمة ابن خلدون ص٤٥٥.

# د فقهې د اصولو مدارس

د فقهې د اصولو له مدارسو څخه هغه میتودونه او تګلارې مراد دي چې زموږ د اصولو علماوو کارولي او زموږ د اصولو کتابونه وربانديې مشتمل دي. دا تګلارې درېو ډولو ته وېشلای شو:

۱- د فقهاوو مدرسه.

۲- د أصوليانو مدرسه.

۳- د پورتنيو دواړو تګلارو يوځای کوونکې مدرسه.

**لومړی: د فقهاوو مدرسه**

ددې مدرسې پيروانو د فقهې فرعي مسايل راټول کړل، يو بل ته ورته مسألو ته يې ګډ أصول جوړ کړل. داسې يې وېتېله چې دا اصول د مجتهدينو امامانو په ذهن کې وو او د هغو پر بنسټ يې دا فرعي احکام استنباط کړي نو په دې مدرسه کې فقهي فروع له اصولو څخه مخکې منځ ته راغلي. بيا د فروعو د استقراء په نتيجه کې د هغو لپاره اصول استنباط شوي.

دې تګلارې ته حنفي فقهاوو ډېر خدمتونه کړي، چې اوس يې د حنفي تګلارې په نوم شهرت موندلی.

ددې تګلارې تعقيبوونکي ځينې مشهور کتابونه دادي:

۱- أصول الجصاص، د امام ابوبکر احمد بن علي رازي جصاص ( متوفی:۳۷۰ هـ ) ليکنه.

۲- کنز الوصول الی معرفة الأصول، د امام فخرالاسلام علي بن محمد بزدوي (متوفی: ۴۸۲ هـ ) ليکنه.

۳- أصول السرخسي، د امام ابوبکر محمد بن احمد بن سهل سرخسي (متوفی: ۴۸۳ هـ ) ليکنه.

**دويم: د اصوليانو مدرسه**

دې مدرسې چې د متکلمينو مدرسه هم ورته وايي د فقهې له فروعاتو پرته يوازې د اصولي قاعدو پياوړتيا ته پام اړولی. که څه هم ددې مدرسې زياتره پيروان د شافعي مذهب علماء دي، خو په دې مدرسه کې د مذهبي تړاو اغيز ډېر کم ليدل کېږي. څرنګه چې د فقهې فرعي مسايل د اصولي قاعدو پر بنسټ راوېستل کېږي، نو غوره دا ده چې دا قاعدې خپلواکه او مستقلې وي.

ددې مدرسې ځینې مشهور کتابونه په لاندې ډول دي:
۱- اللُّمَع، د امام ابواسحاق شیرازي (متوفی: ۴۷۶هـ ) لیکنه.
۲- **المُسْتَصْفَى مِنْ عِلْمِ الأُصُوْلِ**، د امام حجة الاسلام ابوحامد محمد غزالي (متوفی: ۵۰۵ هـ ) لیکنه.
۳- **الْإِحْكَامُ فِيْ أُصُولِ الأَحكامِ**، د امام سیف الدین آمدي (متوفی: ۶۳۱ هـ ) لیکنه.
۴- **الْمَحْصُوْلُ**، د امام فَخْرُالدّین رازي (متوفی: ۶۰۶ هـ ) لیکنه.

**دریم: د فقهاوو او اصولیانو د تګلارو یوځای کوونکې مدرسه**

پدې کې شک نشته چې لومړنۍ دواړه مدرسې یو لړ ښېګڼې او مثبت ټکي لري. هره یوه یې داسې ځانګړتیاوې لري چې په بله کې نه لېدل کېږي. پر همدې بنسټ ځینو علماوو د اصولو داسې کتابونه ولیکل چې د دواړو مدرسو نظریات یې پکې راټول او یوه تګلاره یې ترې جوړه کړه.

ددې مدرسې مهم کتابونه دادي:
۱- **بَدِيْعُ النِّظَامِ الْجَامِعُ بَيْنَ كِتَابَيْ الْبَزْدَوِيْ وَالإِحْكَامِ**، د امام مظفرالدین احمد بن علي ساعاتي حنفي (متوفی:۶۴۹ هـ ) لیکنه.
۲- **التَّنْقِيْحُ وَشَرْحُهُ التَّوْضِيْحُ**، د صدر الشریعة عبدالله بن مسعود حنفي (متوفی: ۷۴۷ هـ ) لیکنه.
۳- **شَرْحُ التَّوْضِيْحِ**، د شیخ سعد الدین عمر تفتازاني شافعي (متوفی: ۷۹۲ هـ ) لیکنه.
۴- **التَّحْرِيْرُ** ، د ابن الهمام حنفي (متوفی: ۸۶۱ هـ ) لیکنه او **التَّقْرِيْرُ شَرْحُ التَّحْرِيْرِ**، د لیکوال د شاګرد، محمد بن امیر الحاج (متوفی: ۸۷۹ هـ ) لیکنه.
۵- **مُسَلَّمُ الثُّبُوْتِ**، د محب الله بن عبدالشکور بهاري (متوفی: ۱۱۱۹ هـ ) لیکنه.




۱- د فقهې د اصولو مدارس څو دي؟ نومونه یې واخلئ.
۲- د هرې مدرسې ځانګړتیاوې بیان کړئ.
۳- د اصولي مسایلو په څېړنه کې د فقهاوو او متکلمینو میتودونه پرتله کړئ او هم د متکلمینو ځانګړتیاوې بیان کړئ. همدا راز د دواړو ډلو د ځینو کتابونو نومونه هم واخلئ.
۴- ولې ځینو اصولیانو د فقهاوو او متکلمینو د تګلارو د یو کولو په اړه کتابونه ولیکل؟ په دې اړه د درې کتابونو نومونه واخلئ.


**کورنۍ دنده:**

په لوست کې د یادو شویو کتابونو پرته د اصولو د علم د نورو شپږو کتابونو نومونه ولیکئ.

# د اسلامي شریعت مصادر (مأخذ)

د اسلامي شریعت څلور مصادر دي چې قرآن کریم او سنت نبوي یې اصلي او لومړني مصادر دي اجماع او قیاس په دویمه مرحله کې ځای لري. په دې لوست کې به د قرآن کریم په اړه معلومات درکړو.

**قرآن کریم**

الله جل جلاله پر خپل پیغمبرﷺ قرآن کریم رانازل کړی او په قرآن کې یې د ژوندانه لارې چارې ټاکلي. الله ﷻ په خپل کتاب کې د انسانانو لپاره عقیده، عبادت، د ژوندانه نظام او نور ټول هغه شیان روښانه کړي چې انسانان ورته د دنیا او آخرت په هکله اړتیا لري. که چېرې انسانان ایمان راوړي، د قرآن کریم پر لارښوونو ځان پوه کړي او ورباندې عمل وکړي نو له شکه پرته به د انسانیت لوړو درجو ته ورسیږي.

**قرآن کریم د شریعت لومړی مصدردی**

الله جل جلاله فرمایي: ﴿وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُصِيبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ وَإِنَّ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ لَفَاسِقُونَ۝أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ﴾ [المائدة: ۴۹_۵۰] **ژباړه:**
نو ای محمده ﷺ، ته د الله له نازل کړي قانون سره سم ددې خلکو د چارو فیصله وکړه او د هغو د خواهشاتو پیروي مه کوه. پام کوه چې دا خلک تا په فتنه کې وانه چوي. دیوې ذرې په اندازه هم له هغه هدایت نه وانه وړې چې الله ﷻ تاته درلیږلی دی. که دوی ورڅخه مخ واړوي، نو وپوهیږه چې الله ﷻ ددوی د ځینو ګناهونو په مجازات کې په غم کې ددوی د لتاړولو اراده کړې ده او دا حقیقت دی چې دا خلک زیاتره فاسقان دي. (که دوی د خدای ﷻ له قانون څخه مخ اړوي) نو آیا بیا د جاهلیت فیصله غواړي؟ په داسې حال کې کوم خلک چې پر الله ﷻ باور لري د هغو په نزد له الله ﷻ نه بل غوره فیصله کوونکی هیڅ نشته.

قرآن کریم د شریعت د دلایلو بنسټ دی. د شریعت نور دلایل لکه سنت، اجماع او قیاس له قرآن څخه اخیستل شوي او د حجیت ثبوت یې پر قرآن کریم ولاړ دی.

**قرآنکریم د فقهي احکامو لومړی مصدر دی.**

قرآنکریم د بشریت لارښود دی، د انسانیت د اصلاح لپاره زرینې لارښوونې لري ترڅو انسانان له هلاکت څخه وژغوري، دغه لارښوونې هر اړخیزې دي. د عقیدې اصلاح، د اخلاقو اصلاح

او همدا راز د عبرت په موخه د پخوانیو امتونوکیسې په قرآنکریم کې راغلې دي. خو د فقهي احکامو آیتونه یې پنځه سوو ته رسیږي چې له هغو څخه فقهي احکام استنباط کیږي.

## د قرآن کریم تعریف

که څه هم قرآن کریم د زیات شهرت له امله تعریف ته اړتیا نه لري، خو بیا هم اصولیانو د قرآن تعریف ته پام اړولی او په دې هکله یې داسې ویلي: «هو القرآن المنزل على رسول الله ﷺ المكتوب في المصاحف المنقول عن النبي ﷺ نقلا متواتراً بلا شبهة» [1] قرآن کریم پر رسول اللهﷺ هغه نازل شوی کتاب دی چې په سپارو کې لیکل شوی او له کومې شبهې پرته په متواتر ډول له رسول اللهﷺ څخه نقل شوی.

## د قرآن کریم په اړه باید په لاندې ټکو وپوهیږو

**لومړی:** قرآن کریم یوازې همغه کتاب ته ویل کیږي چې پر محمدﷺ نازل شوی. په دې بنسټ نورو اسماني کتابونو، لکه تورات او انجیل ته چې پر محمدﷺ نه دي نازل شوي، قرآن کریم نشو ویلای.

**دویم:** د لفظ او معنا دواړو مجموعې ته قرآن ویل کیږي. په تعریف کې د المکتوب ټکی د (ثابت) په معنا دی. دا څکه چې په پاڼو کې موږ ته یوازې ټکي ښکاري. نه لفظ اورو او نه معنا وینو، بلکې لفظ او معنا پدې ټکو کې پراته او نغښتي دي. نو ویلای شو چې د قرآن کریم لفظ په حقیقي ډول ثابت دی او معنا یې په تقدیري توګه په ټکو کې پرته ده.

**دریم:** قرآن کریم موږ ته په متواتر ډول را رسیدلی، یعنې داسې یوه ټولي تر موږه را رسولی چې په درواغو باندې د هغوی توافق او یووالی ناشونی دی. دا څکه چې د شمیر پر ډیروالي سربیره هغوی له یوې سیمې او یو قوم څخه هم نه دي. دا تواتر د قرآن کریم د نقلولو په ټولو پړاوونو کې موجود دی. لومړی، وروستی او منځنی پړاو د تواتر له نظره هیڅ توپیر سره نه لري او ټول سره یو برابر دي.

پدې بنسټ هغه قراءتونه چې په متواتر ډول ندي رانقل شوي، له قرآن کریم څخه نه شمیرل کیږي، لکه د عبدالله بن مسعودؓ څخه په روایت شوي قراءت کې چې د ﴿فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ﴾ [البقرة: ١٩٦، المائدة: ٨٩] په پای کې د (متتابعات) ټکی ور زیات شوی. علماء وایي چې پدې قراءت کې د (متتابعات) ټکی د عبدالله بن مسعودؓ له پلوه د (ثلاثة أيام) تفسیر دی او د قرآن له الفاظو څخه نه شمیرل کیږي.

---

[1] - (التعريفات، علی بن محمد بن الجرجاني، دار الكتاب العرب بيروت د چاپ کال: ١٤٠٥هـ ص: ٢٢٣).

**څلورم:** قرآن کریم د الله تعالی د ژمني سره سم له زیاتونې او کمونې څخه محفوظ دی. الله ﷻ فرمايي: ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ [الحجر: ۹] **ژباړه:** موږ پر تا قرآن نازل کړی او موږ پخپله د هغې ساتونکي یو.

په قرآن کریم کې د خلکو له خوا، نه کومه زیاتونه او نه کمونه رامنځته شوې او نه څوک ددې توان لري چې په قرآن کریم کې زیاتوالی او نقصان راولي. دا ځکه چې الله ﷻ پخپله د قرآن کریم د ساتنې او حفاظت ژمنه کړې.

**پنځم:** قرآن کریم معجز کتاب دی او هیڅ بشر نشي کولای چې د قرآن په څېر کتاب ولیکي. الله ﷻ فرمايي: ﴿قُلْ لَئِنِ اجْتَمَعَتِ الْإِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَى أَنْ يَأْتُوا بِمِثْلِ هَذَا الْقُرْآنِ لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا﴾ [الإسراء: ۸۸].

**ژباړه:** ووایه (ای محمده) که انسانان او پېریان ټول لاسونه یو کړي او ددغه قرآن غوندې دکوم شي د راوړلو هڅه وکړي، نو رابه یې نشي وړلای، که ټول یو له بل سره مرسته وکړی هم.

**فعالیت**

په قرآن کریم کې د بقرې سورت درویشتم او د هود سورت دیارلسم آیت ولولئ او د قرآن کریم د هغې تحدي او ننګونې په اړه معلومات ورکړئ چې قرآن کریم عربو ته د قرآن کریم په څېر کتاب جوړولو په اړه اعلان کړې وه.

**د قرآن د اعجاز اړخونه**

د قرآن کریم لومړی اعجاز دا وو چې په خپل بلاغت سره یې ټول عرب حیران کړل، ځکه هغوی پخوا هیڅکله دومره له بلاغته ډک کلام نه وو اورېدلی.

سره له دې چې قرآن په یوه نالوستي شخص نازل شوی، خو د ژوند لپاره یې داسې نظام وړاندې کړ چې تل پر بل هر نظام لوړ او پورته دی. دا نظام په هغو اعتقادي اصولو، عملي احکامو او لوړو اخلاقي ارزښتونو مشتمل دی چې بشر ورته ټینګه اړتیا لري او په ټولنه کې امن، پراخي، نېکمرغي او ډاډ رامنځته کولی شي. که چېرې قرآن د الله ﷻ کلام نه وای او پیغمبر ﷺ له ځانه جوړ کړی وای، نو هرو مرو به پکې ټکر او اختلاف موجود وو.

دا هم د قران کریم اعجاز دی چې عرب یې د پخوانیو امتونو له هغو پېښو خبر کړل چې دوی یې په اړه هیڅ معلومات نه درلودل. الله ﷻ په دې اړه فرمايي: ﴿ تِلْكَ مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ

﴿نُوحِيهَا إِلَيْكَ مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَا أَنْتَ وَلَا قَوْمُكَ مِنْ قَبْلِ هَذَا فَاصْبِرْ إِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ﴾ [هود: ٤٩].

**ژباړه:** (ای محمده ﷺ!) دا غیبي خبرونه دي چې موږ يې تاته وحي کوو. له دې نه مخکې نه ته ورباندې پوهېدلې، نه ستا قوم، نو صبر وکړه، راتلونکې د پرهېزګارانو (په ګټه) دی.

د قرآن کریم بل اعجاز دا دی چې په راتلونکې کې د پېښېدونکو واقعاتو په اړه يې خلکو ته خبر ورکړ. دا پېښې وروسته د قرآن له وینا سره سمې رامنځته شوې. د الله ﷻ دا وینا له همدې جملې څخه ده چې فرمايي: ﴿الم ۞ غُلِبَتِ الرُّومُ ۞ فِي أدنى الْأَرْضِ وَهُمْ مِنْ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُونَ ۞ فِي بِضْعِ سِنِينَ لِلَّهِ الْأَمر مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُونَ﴾[الروم: ١ ـ ٤].

**ژباړه:** ا- ل- م. روميان مغلوب شوي دي. په نږدې هيواد کې او له خپل دغه مغلوبوالي نه وروسته به هغوی برلاسي شي. په څو کلونو کې دننه، یوازې د الله ﷻ واک دی مخکې هم او په وروسته کې هم او دا به هغه ورځ وي چې خوشحاله به شي مسلمانان.

همدا راز قرآن کریم ځینو داسې علمي حقایقو ته اشاره کړې چې ساینس اوس ثابت کړل، الله ﷻ فرمايي: ﴿أولَمْ يَرَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنَاهُمَا وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ أَفَلَا يُؤْمِنُونَ﴾ [الأنبياء: ٣٠].

**ژباړه:** آیا هغه کسان چې کافران دي، غور نه کوي چې دغه ټول اسمانونه او ځمکه يو له بل سره نښتي وو، بيا موږ دوی دواړه بېل کړل او له اوبو نه مو هر ژوندی شی پیدا کړ. آيا هغوی (زموږ دغه خلاقيت) نه مني؟

**فعاليت**

لاندې آيتونه په قرآن کريم کې پيدا او پر معنا يې ځانونه پوه کړئ:

- ﴿وَالسَّمَاءَ بَنَيْنَاهَا بِأَيْدٍ وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ ۞ وَالْأَرْضَ فَرَشْنَاهَا فَنِعْمَ الْمَاهِدُونَ ۞ وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾ [الذاريات:٤٧ـ ٤٩]

- ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ سُلَالَةٍ مِنْ طِينٍ۞ ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَكِينٍ۞ ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ [المؤمنون: ١٢ـ١٤]

په پورتنيو آيتونو کې د اعجاز په اړه وغږيږئ.

### د قرآن کریم ثبوت قطعي دی

الله ﷻ فرمايي: ﴿ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴾ [الحجر: ۹] **ژباړه:** موږ پر تا قرآن نازل کړی او موږ پخپله د هغې ساتونکي يو.

په دې کې هيڅ شک نشته چې الله پاک د قرآن د ساتنې ژمنه پوره کړې. قرآن کريم له يو نسل څخه بل نسل ته په تواتر سره تر موږه رارسېدلی. رسول الله ﷺ قرآن کريم په يادو زده کړ او له وفاته وړاندې يې جبريل عليه السلام ته واورولو. اصحابو له رسول الله ﷺ څخه قرآن زده کړ او تابعينو بيا له اصحابو د قرآن زده کړه کوله. د قرآن کريم د زده کړې دا لړۍ تر نن ورځې روانه ده [۱].

محمد بن نظام الدين انصاري وايي: اهل سنت والجماعت په دې اتفاق کړی چې په سورتونو کې په ترتيب سره د آيتونو کېښودل د پېغمبر ﷺ په امر تر سره شوي او په دې خبره هم اجماع شوې چې قرآن کريم له شکه پرته په متواتر ډول له رسول الله ﷺ څخه رانقل شوی [۲].

په متواتر ډول د قرآن کريم رانقلېدلو معنا دا ده چې قرآن قطعي السند دی. په متواترو او قطعي اسنادو کې د شک ځای نشته. د قرآن کريم معتبر قراءتونه ټول متواتر دي. د غيرمتواترو يا شاذو قراءتونو موجوديت کومه ستونزه نه ده. پر دې سربېره د متواترو قراءتونو سره د شاذو قراءتونو اختلاف د قراءت په متن کې نه، بلکې د قراءت په شکل کې دی. الله پاک د قرآن کريم ثبوت له شک څخه خوندي کړی. قرآن د فقهي بنسټ او هغه تله ده چې د فقهي احکام پرې تلل کېږي، نو کله چې د يوه حکم دليل د قرآن آيت وي، د دليل د ثبوت او سند په اړه څېړنې ته اړتيا نشته، ځکه چې قرآن قطعي الثبوت دی. په دې توګه که د قرآن کريم په دليلونو کې څېړنه کېږي نو هغه به د دلالت له پلوه وي نه د ثبوت او سند له پلوه.




۱- قرآن تعريف کړئ او هم روښانه کړئ چې آيا قرآن د الفاظو نوم دی، که د معنا، او که د دواړو؟

۲- متواتر روايت څه ته وايي او په آحادو روايتونو نقل شوي قراءتونه قرآن بلل کېږي که نه؟

۳- د قرآن د اعجاز په اړخونو رڼا واچوئ.

---

(۱) په دې هکله وګوره: د غزالي کتاب:المستصفی ۱\۱۰۱ او د علامة عبد العلي محمد بن نظام الدين الأنصاري کتاب: فواتح الرحموت شرح مسلم الثبوت في أصول الفقه ۲\ ۱۳ دار الفکر، بيروت – لبنان.

(۲) فواتح الرحموت۲/۱۳-۱۲

# د قرآن کريم حکمونه

په قرآن کريم کې بېلا بېل حکمونه موجود دي چې کولای شو په درېو ډولو يې ووېشو.

**لومړی:** هغه احکام دي چې له عقيدې سره تړاو لري، لکه پر الله ﷻ ايمان، پر ملايکو ايمان، پر کتابونو، رسولانو او د آخرت په ورځ ايمان چې د توحيد په کتابونو کې ورباندې خبرې کېږي.

**دويم:** هغه احکام چې د نفسونو په پاکولو پورې اړه لري، د دوی خويونه د کمال لور ته بيايي، دا ډول د اخلاقي احکامو په نوم يادېږي او د څېړنې ځای يې د اخلاقو علم دی.

**دريم:** هغه حکمونه چې د مکلفو انسانانو په عملونو او وينااوو پورې اړه لري او د فقهې په نامه يادېږي. دا حکمونه ډېر ډولونه لري چې په لاندې توګه دي:

**أ- عبادتونه:** لکه لمونځ، روژه او نور چې د ادا کولو موخه يې له الله ﷻ سره اړيکې ټينګول دي.

**ب- د کورنۍ احکام:** لکه نکاح، طلاق، نسب، ميراث، نفقه او داسې نور.

**ج- د معلاملاتو احکام:** لکه د اخيستلو او خرڅولو بېلابېل ډولونه او د هغې اړونده مسايل.

**د- د جنايتونو او سزاګانو احکام:** لکه د حدودو، قصاص او تعزيرونو جرمونه او د هغوی سزاګانې. دې ډول احکامو ته په شريعت کې د جناياتو فقه وايي چې موخه يې د دين، ځان، ناموس، عقل او شتمنيو ساتنه ده.

**هـ - د قضا، ګواهي او سوګند احکام:** ددې فقهې موخه د خلکو تر منځ په عدالت پرېکړه کول دي.

**و- د دولت اړونده احکام:** د فقهې په دې څانګه کې د حکومت او اتباعو په حقونو او مسؤليتونو خبرې کېږي او د اساسي قانون موضوعات پکې بيانېږي.

**ز- له نورو دولتونو سره د اسلامي دولت اړيکې:** د فقهې دا حکمونه د سولې او جګړې پر مهال له نورو دولتونو سره د اسلامي حکومت اړيکې بيانوي. همدا راز د اسلامي دولت دننه له پرديو سره، چې د مستأمنينو په نامه يادېږي، اړيکې روښانوي.

**ح- اقتصادي حکمونه:** دا حکمونه د دولت د مالي سرچينو، لګښتونو او د بډايانو په مالونو کې د بې وزلو د حقونو اړونده چارې تنظيموي.

**په قرآن کريم کې د احکامو بيان**

الله ﷻ فرمايي: ﴿وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِكُلِّ شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَى لِلْمُسْلِمِينَ﴾ [النحل: ٨٩] **ژباړه:** موږ دغه کتاب پر تا نازل کړی دی چې په ښکاره د هر شي څرګندوونکی دی او د هغو خلکو لپاره هدايت، رحمت او زيری دی چې امر منلو ته يې غاړه ايښې.

همدا راز په بل ځای کې فرمايي: ﴿مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ﴾ [الأنعام: ٣٨]. **ژباړه:** موږ په دې کتاب کې څه نيمګړتيا نه ده پرېښې.

**په قرآن کې د احکامو د بيان طريقې**

په قرآن کريم کې د ټولو احکامو بيان شوی دی خو دا احکام په درې طريقو بيان شوي:

لومړی: د شريعت د عمومي قاعدو او بنسټونو بيانول.

دويم: په مجمله توګه د احکامو بيانول.

دريم: په تفصيلي توګه د احکامو بيانول.

**لومړی ډول:** د شريعت د هغو عمومي قاعدو او اصولو يادونه چې د احکامو د راويستلو او تشريع بنسټ بلل کيږي. د دې اصولو يو څو بېلګې په لاندې ډول دي:

**د شورا قاعده:** الله ﷻ فرمايي: ﴿وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ﴾ [الشورى: ٣٨]، په بل ځای کې فرمايي: ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ﴾ (آل عمران: ١٥٩]

**د عدالت لزوم:** الله ﷻ فرمايي: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ﴾ [النحل: ٩٠]، الله تعالى په عدل امر کوي.

په همدې توګه په بل ځای کې فرمايي: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ﴾ [النساء: ٥٨]، الله تعالى تاسو ته د امانتونو(په هکله)، خاوندانو ته د سپارلو امر کوي، او د دې چې کله د خلکو تر مينځ پريکړه کوئ، نو په عدل به يې کوئ.

**د بل چا په ګناه څوک نه نيول کيږي:** په دې اړه الله ﷻ فرمايي: ﴿وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى﴾ [الأنعام: ١٦٤]، د هيڅ نفس کسب (لاس ته راوړنې) له ده پرته په بل چا نه حسابيږي، او هيڅ پيټی پورته کوونکی د بل چا پيټی نه پورته کوي.

**سزا به د ګناه په کچه وي:** د الله پاک وينا ده: ﴿وَجَزَاءُ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِثْلُهَا﴾ [الشورى: ٤٠]، د بدۍ جزا د هغه په ډول بدي ده.

**د خلکو د مالونو حرمت او د اخيستلو خرڅولو رواوالی:** ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ﴾ [النساء: ٢٩]، ای مؤمنانو په خپل منځ کې يو د بل مالونه په باطله سره مه خورئ، مګر که ستاسو په رضا تجارت وي.

**د سود او قمار حراموالی** او د هر هغه ښناك او خوراك حراموالی چې د انسان بدن ته زيان رسوي. په دې اړه د الله پاك وينا ده چې: ﴿وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا﴾ [البقرة: ۲۷۵]، او الله تعالی بيعه روا او سود يې حرام کړی.

همدا راز فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [المائدة: ۹۰]، ای مؤمنانو شراب، قمار، بتان او غشي اچول پليتي ده له شيطاني چارو څخه دي، نو ځان ورڅخه وساتئ، څو برياليي شی.

**د ښېګڼې په کارونو کې له يو بل سره مرسته:** د ټولو هغو کارونو ترسره کول چې د امت ښېګڼې پکې وي. همدا راز د بديو او ظلم په کارونو کې له مرستې کولو څخه ځان ژغورل. الله پاك فرمايي: ﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾ [المائدة: ۲]، او يو له بل سره په نېکۍ او پرهيز ګارۍ کې مرسته وکړئ او په ګناه او تېري کې يو له بل سره مرسته مه کوئ.

**د ژمنو پوره کول:** په دې اړه الله تعالی فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَوْفُوا بِالْعُقُودِ﴾ [المائدة: ۱]، ای مؤمنانو په تړونونو وفا وکړئ.

**د ټګۍ او خيانت حراموالی:** الله پاك فرمايلي: ﴿وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوا بِهَا إِلَى الْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا مِنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالْإِثْمِ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ [ البقرة: ۱۸۸]، په خپلو منځونو کې يو د بل مال په باطله مه سره خورئ، او حاکمانو ته يې د دې لپاره مه ور وړاندې کوئ چې د خلکو يوه برخه مال په ګناه وخورئ، سره له دې چې پوهېږئ.

**دين آساني راولي:** په دې هکله په قرآن کريم کې داسې راغلي: ﴿يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ﴾ [البقرة: ۱۸۵]،الله تعالی په تاسو د اسانۍ اراده لري، او په تاسو د سختۍ اراده نه لري.

بل ځای فرمايي: ﴿يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُخَفِّفَ عَنْكُمْ وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا﴾ [النساء: ۲۸]، الله تعالی اراده لري چې په تاسو اساني راولي او انسان ضعيف پيدا شوی.

همدا راز فرمايي: ﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ﴾ [الحج: ۷۸]، او په دين کې يې په تاسو سختي نه ده لازمه کړې.

**د اړتيا پر مهال د حرامو رواوالی:** په دې هکله د الله پاك وينا ده چې: ﴿فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ [البقرة: ۱۷۳]، څوك چې (د حرامو خوړلو ته) اړ شي او سرکشي او تېری کوونکی نه وي، نو هيڅ ګناه ورباندې نشته (چې د ضرورت په اندازه ورڅخه ګټه واخلي) بې شکه الله ﷻ ښوونکی او مهربان دی.

د عمومي اصولو او قاعدو په توګه د ځينو احکامو بيانول د شريعت د پراخوالي لامل شوي او اسلامي شريعت ته دا وړتيا ورپه برخه کوي چې د نويو پېښېدونکو مسايلو لپاره د حل مناسبې لارې په ګوته کړي.

**فعاليت**

د الله پاك ددې وينا له مخې: ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ﴾ [النحل: ۹۰] قرآن کريم د عدالت بنسټ دی.
کورنی، ګاونډيانو او ټولګيوالو سره په تعامل او د ژوند په ټولو چارو کې د عدالت د تطبيق په اړه وغږيږئ.
هر زده کوونکی دې د عدالت د تطبيقولو په اړه يو ژوندی مثال پخپله کتابچه کې وليکي او ملګرو ته دې وړاندې کړي.

**دويم ډول:** په مجمله توګه د احکامو بيانول.
قرآن ځينې احکام مجمل بيان کړي، په داسې توګه چې بيان ته اړتيا لري، لکه د لمانځه، زکات، حج او سود احکام.
دا احکام په مجمل او لنډ ډول په قرآن کريم کې راغلي خو پېغمبرﷺ د خپلو وېناوو او عملونو په وسيله هغه روښانه کړي. ددوی ارکان، شرطونه او اړونده ټول آداب او مسايل يې بيان کړي.
**دريم ډول:** په تفصيلي توګه د احکامو بيانول.
تفصيلي احکام په قرآن کريم کې لږ دي، چې بېلګې يې د ميراث اندازې، د طلاق او لعان څرنګوالی، د محرمو ښځو بيان او داسې نور دي.




۱- د قرآن کريم احکام په درې ډوله دي. هر ډول يې له مثال سره بيان کړئ.
۲- په قرآن کريم کې د ځينو عملي حکمونو په اړه هراړخيزه رڼا واچوئ.
۳- احکامو لره د قرآن بيان په درې ډوله دی، شرحه يې کړئ او بېلګې يې هم وليکئ.

# نبوي سنت

د اسلامي شريعت له مصادرو څخه دويم مصدر نبوي سنت دی. سنت څه ته ويل کېږي؟ په قرآن کې د سنتو د حجيت دليلونه کوم دي؟ او سنت څو ډولونه لري؟

دا ټولې هغه پوښتنې دي چې په دې لوست کې به ورته ځواب ووايو.

**د سنت تعريف**

سنت په لغت کې لارې او کړو وړو ته ويل کيږي.

د اصولو عالمانو په اصطلاح کې د رسول اللهﷺ ويناوو، کړنو او تقرير ته سنت ويل کېږي.

د رسول اللهﷺ د وېناوو مثالونه ډېر زيات دي. د بېلګې په ډول د رسول اللهﷺ دا وينا چې فرمايي: (صَلُّوْا كَمَا رَأَيْتُمُوْنِى أُصَلِّيْ)[١]. همدا راز د پېغمبرﷺ دا وينا: «مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ وَذَلِكَ أَضْعَفُ الإِيمَانِ»[٢] د سنت مثالونه دي.

د سنت په تعريف کې د کړنو څخه مقصد د رسول اللهﷺ هغه اعمال دي چې د اسلامي شريعت د تطبيقولو پر مهال يې تر سره کړي، لکه د لمانځه، حج او غزاګانو پر مهال.

د تقرير معنا دا ده چې د رسول اللهﷺ په وړاندې يو کار تر سره شي، يا د اصحابو د کومې کړنې په اړه ورته خبر ورکړل شي او رسول اللهﷺ ورباندې سکوت (چوپتيا) غوره کړي. د داسې کارونو په وړاندې د رسول اللهﷺ چوپتيا د هغه کار د رواوالي معنا ورکوي. د تقرير يوه بېلګه د تيمم د آيتونو له نازلېدو مخکې د رسول اللهﷺ په وړاندې د اوبو د نشتوالي پر مهال د اصحابو تيمم وهل دي. همدا راز د اصحابو په پرېکړو او اجتهاد باندې د رسول اللهﷺ سکوت او چوپتيا د تقرير مثال دی. په همدې توګه د رسول اللهﷺ په وړاندې د اصحابو له خوا د ځنګلي خرو او سمسارو غوښه خوړل او د پېغمبرﷺ چوپتيا د تقرير بله بېلګه ده. تقرير يا په کارونو باندې چوپتيا ځکه د رواوالي دليل شمېرل کېږي چې رسول اللهﷺ د ناروا کارونو د کولو پر مهال چې بيان ته به اړتيا وه، چوپ نه پاتې کېده.

---

( ١) رواه البخاري او أبو داود او أحمد.

( ٢) رواه مسلم.

**فعالیت**

د خپل ذهن څخه د قولي سنت درې مثالونه، د فعلي سنت دوه مثالونه او د تقريري سنت يو مثال وړاندې کړئ.

**د سنتو حجيت**

فقهاوو په دې خبرې اتفاق کړى چې سنت د اسلامي شريعت يو مهم اصل دى. قرآن کريم زياتره شرعي احکام په لنډه او مجمل ډول بيان کړي چې رسول اللهﷺ په خپلو ويناوو او افعالو سره د هغو احکامو تشريح کړې لکه د لمانځه، زکات او حج احکام.

د سنتو د حجيت په هکله قرآني دلايل په دې ډول دي.

١- الله تعالى فرمايي: ﴿مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ وَمَنْ تَوَلَّى فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا﴾ (النساء: ٨٠). **ژباړه**: چا، چې د پيغمبر اطاعت وکړ هغه په اصل کې د خداىﷻ اطاعت وکړ او چا، چې مخ واړوه، نو په هر صورت موږ پر دې خلکو د څارونکي او ساتونکي په توګه نه يې لېږلى.

د رسول اللهﷺ اطاعت په حقيقت کې د الله پاک اطاعت دى، دا ځکه چې رسول اللهﷺ د الله پاک له حکمونو پرته په بل څه امر نه کوي، نو د اللهﷻ د حکمونو په څېر د رسول اللهﷺ د حکمونو منل هم واجب دي.

٢- د سنتو د حجيت بل دليل د الله پاک دا وينا ده: ﴿قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ﴾ [آل عمران: ٣٢]. **ژباړه**: (دوى ته) ووايه چې: د اللهﷻ او رسولﷺ اطاعت ومنئ. که هغوى مخ واړاوه نو الله پاک له کافرانو سره مينه نه کوي.

په دې آيت کې اللهﷻ د خپل ځان او پيغمبرﷺ په اطاعت کولو امر کړى او خبر يې ورکړى چې د اللهﷻ او پيغمبرﷺ د امر څخه سرغړونه د کفر لامل کيږي.

٣- دا هم د سنتو د حجيت دليل دى چې فرمايي: ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَنْ يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُبِينًا﴾ [الأحزاب: ٣٦] **ژباړه**: هيڅ يو مؤمن او هيڅ يوه مؤمنه دا حق نه لري چې کله اللهﷻ او د هغه رسول د کومې معاملې فيصله وکړي چې هغه ته پخپله د خپلې معاملې د فيصله کولو اختيار حاصل اوسي. او څوك چې له اللهﷻ او د هغه له رسولﷺ نه سرغړاوى وکړي نو هغه په ښکاره ګمراهۍ کې ولوېد.

دا آیت څرګندوي چې الله جَلَّجَلَالُهُ د خپل حکم او د پیغمبرﷺ د پرېکړې د منلو په وړاندې د مؤمنانو څخه واک اخیستی او مؤمن نشي کولای چې د رسول اللهﷺ امر رد کړي او ویې نه مني بلکې مؤمنان د رسول اللهﷺ د امر په منلو مکلف دي.

۴- د سنتو د حجیت بل دلیل د قرآن کریم دا آیت دی: ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا﴾ [الحشر: ۷] او څه چې رسولﷺ درته راوړه نو ویې منئ او عمل پرې وکړئ، او له کوم څه څخه مو چې منعه کړي، نو ورڅخه منعه شئ.

په قرآن کریم کې د سنتو پر حجیت دلیلونه ډېر زیات دي. قرآن د سنتو درجه بیان کړې، د رسول اللهﷺ د امر په منلو یې حکم کړی او د هغه له مخالفت څخه یې خلک ډارولي.

**د سنتو په ساتنه کې د علماوو زیار**

سنت د الله جَلَّجَلَالُهُ له خوا پیغمبرﷺ ته د وحی یو ډول دی. د رسول اللهﷺ هره وینا او عمل حق دی. د قرآن د عملي بېلګې په توګه د رسول اللهﷺ په سنتو کې د ټولنې حالات او د چاپېریال ظروف په پام کې نیول شوي چې دا حالات او ظروف وخت په وخت بدلون مومي. د بېلګې په ډول رسول اللهﷺ اصحابو ته د قرآن د لیکلو په څېر د حدیثو د لیکلو امر نه وو کړی، ځکه نو د حدیثو یا سنتو لیکل د لومړۍ پېړۍ را وروسته رواج شول. خو د پیغمبر اصحابو د رسول اللهﷺ احادیث په یادو زده کړي وو او بیا یې تابعینو ته ور زده کړل چې تابعینو بیا وروسته نسلونو ته وښودل او دا لړۍ تر ننه روانه ده.

په وروسته وختونو کې چې د حدیثو علم ته پاملرنه زیاته شوه، یو شمېر خلکو له خپله ځانه د حدیثو جوړول پیل کړل او دغه له ځانه جوړې شوې خبرې د حدیثو سره ګډې شوې. دغه مهال د حدیثو د سوچه ساتنې او د حدیثو په روایت کې د درواغو د مخنیوي لپاره یو زیات شمېر مخلص علماء رامخې ته شول او خپل ژوند یې دې چارې ته وقف کړ. کله چې سړی د حدیثو د علم مطالعه کوي، نو ددې سترو علماوو پراخه کوښښونو او بې سارې زیار ته ګوته پر غاښ پاتې شي. په رښتیا چې د حدیثو علماوو په دې لار کې ستر خدمتونه تر سره کړي.

دې علماوو د حدیثو د راویانو لپاره ځانګړي شرطونه کېښودل. د عقل، قوي حافظې او عدالت له درلودلو پرته د چا حدیث نه منل کېده. دوی د حدیثو د ساتنې لپاره یو نوی علم رامنځته کړ، چې د جرحې او تعدیل په نامه یادېږي او د اسلامي امت لپاره یو نه

هېرېدونکی ویاړ دی. علماوو، د جرحې او تعدیل پر اساس ټول راویان چاڼ کړل او هر چا ته یې خپل ځای وټاکه. په دې کار کې له هیچا ونه وېرېدل، څوک چې د باور وړ نه وو هغه یې بې باوره وګڼل او څوک چې مردود و، هغه یې رد کړل. د یو راوي لپاره یوازې عدالت او اهلیت بس نه و، بلکې پر عدالت او اهلیت سربېره ذهني ویښتیا، غښتلې حافظه، له غفلته لرې والی او د راویانو پېژندل اړینه خبره وه. پر همدې بنسټ ددې علماوو تر منځ دا خبره ډېره مشهوره وه، چې: د حدیثو علم دین دی، نو له چا څخه چې دین زده کوئ، لومړی د هغه شخصیت وپېژنئ.

**د اصولیانو په وړاندې د سنتو ډولونه او د هغو درجې**

اصولیانو مبارک سنت په دوو ډولو وېشلي:

لومړی: هغه سنت چې سند یې رسول الله ﷺ ته رسېدلی وي.

دویم: هغه سنت چې سند یې رسول الله ﷺ ته نه وي رسېدلی.

**لومړی:** هغه سنت چې سند یې رسول الله ﷺ ته رسېدلی وي.

دا سنت په درې ډوله دي چې درېواړه ډولونه یې د منلو وړ دي.

**۱- متواتر:** هغه روایت ته ویل کیږي چې دومره زیاتو کسانو له یو بل څخه روایت کړی او رسول الله ﷺ ته رسېدلی وي، چې په درواغو د دومره زیاتو کسانو د راټولېدلو وېره نه وي.

پنځه وخته لمونځونه، د هغوی رکعتونه او د ادا کولو څرنګوالی او د زکات اندازې د متواتر روایت مثالونه دي.

**د متواتر حکم:** متواتر روایت د انسان علم او یقین راولي او په دلیل نیولو کې د قرآن کریم په څېر قوي دی.

**۲- مشهور:** هغه روایت ته ویل کیږي چې له رسول الله ﷺ څخه یوه یا دوه کسانو روایت کړی وي خو په وروسته پړاوونو کې یې راویان دومره زیات وي چې په درواغو یې د راټولېدو وېره نه وي.

**د مشهور حکم:** مشهور حدیث په آحادو حدیثونو کې تر ټولو لوړه درجه لري او له متواتره راښکته دی. د جمهورو علماوو په وړاندې ګمان (ظن) مینځ ته راوړي او د حنفیانو په نزد اطمینان رامینځ ته کوي. له متواتر راښکته دی او منکر یې کافر نه ګڼل کیږي.

**۳- آحاد حدیثونه:** هغه چې یو یا دوه کسانو روایت کړی وي او د مشهور درجې ته نه وي رسېدلی.

**د آحادو حکم:** د جمهور علماوو په وړاندې دا ډول حدیثونه گمان (ظن) رامنځ ته کوي نه یقین. په دې ډول حدیثونو عمل کول د ټولو امامانو په نظر واجب دي، خو حنفیانو پرې یو بل شرط هم ور زیات کړی او هغه دا چې د آحاد حدیث راوي باید په عمل کې د خپل روایت مخالفت نه وي کړی.

**دویم: هغه سنت چې سند یې رسول الله ﷺ ته نه وي رسېدلی**

کوم حدیث چې سند یې رسول الله ﷺ ته نه وي رسېدلی، هغه به یا مرسل وي یا منقطع.
مرسل هغه حدیث ته ویل کېږي چې تابعي نېغ په نېغه له رسول الله ﷺ څخه روایت وکړي او صحابي له سند څخه وغورځوي. مرسل حدیث د حنفیانو او مالکیانو په وړاندې داسې حجت دی لکه موصول حدیث (موصول هغه حدیث ته ویل کېږي چې له سند څخه یې کوم راوي نه وي غورځول شوی). نورو امامانو بیا د مرسل حدیث د منلو لپاره یو لړ شرطونه ایښي چې تفصیلات یې د اصولو په کتابونو کې بیان شوي.
منقطع هغه حدیث ته ویل کېږي چې له صحابي پرته کوم بل راوي له سند څخه غورځول شوی وي. دا ډول حدیث په اتفاق سره د کوم حکم دلیل کېدای نشي.




۱- د سنت لغوي او اصطلاحي تعریف وکړئ او د قولي، فعلي او تقریري سنتو لپاره یو یو مثال وړاندې کړئ.
۲- د سنتو د حجیت لپاره له قرآن څخه دلیلونه ووایئ.
۳- د سنتو په ساتنه کې د علماوو په کوښښونو رڼا واچوئ.
۴- د متصل السند حدیثونو ډولونه او حکم بیان کړئ.
۵- مرسل حدیث تعریف کړئ او حکم یې بیان کړئ.

يو دېرشم لوست

# اجماع

اجماع د اسلامي شريعت دريم مصدر دى. په دې لوست کې به د اجماع د تعريف، حجيت، مراتبو، د کېدو امکان او اړونده موضوعاتو په اړه رڼا واچوو.

### د اجماع تعريف

اجماع په لغت کې کلك هوډ او اتفاق ته وايي.

د اصولو د علم په اصطلاح کې د اجماع تعريف داسې دى: په يوه زمانه کې په کوم شرعي امر باندې د امت د مجتهدينو اتفاق ته اجماع ويل کيږي[1].

### د اجماع حجيت

اسلامي فقهاء په دې متفق دي چې د اجماع حجيت له قرآن او سنت څخه ثابت دى.

د قرآن کريم څخه پرې دا آيت دليل دى: ﴿وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا﴾ [النساء: ١١٥]

**ژباړه:** څا چې د پيغمبرﷺ د ښمنى ته ملاتړلې وي او د مومنانو له طريقې نه پرته په کومه بله لاره لاړ شي، په داسې حال کې چې سمه لاره ورته څرگنده شوې وي نو هغه به موږ په هماغه لوري وخوځوو چې هغه په خپله ورگرځېدلى او دوزخ ته به يې ننباسو چې څورا بد استوگنځى دى.

الله ﷻ په دې آيت کې د مسلمانانو د لارې مخالفت کوونکو ته د وعيد يادونه کړې، نو څرگنده شوه چې د مسلمانانو د لارې پيروي کول واجب دي او هغه چاره چې مسلمانانو پرې اتفاق کړى وي د مسلمانانو لار بلل کيږي.

له احاديثو څخه د رسول اللهﷺ دا وينا د اجماع د حجيت دليل دى: «لاتجتمع أمتي على ضلالة»[2] **ژباړه:** زما امت په گمراهى نه راټوليږي.

له دې حديث څخه معلومه شوه چې مسلمانان په کوم کار اتفاق وکړي، هغه به حق وي او پيروي يې واجب ده. همدا راز رسول اللهﷺ فرمايلي: «مَا رأىْ الْمُسْلِمُوْنَ حَسَنًا فَهُوَ عِنْدَ اللهِ حَسَنٌ »[1] کوم کار چې مسلمانانو ښه وگڼلو هغه د الله ﷻ په وړاندې هم ښه دى.

---

(١) مسلم الثبوت ج٢ ص٢١١، وفتح الغفار ص ٣٥٠.

(٢) رواه ابن ماجة في كتاب الفتن رقم الباب ٨ رقم الحديث ٣٩٥٠ عن أنس بن مالك يقول : سمعت رسول الله ﷺ يقول : «إن أمتي لا تجتمع على ضلالة، فإذا رأيتم الخلاف فعليكم بالسواد الأعظم».

رسول اللهﷺ دا هم فرمايلي چې: «مَنْ أَرَادَ مِنْكُمْ بُحْبُحَةَ الْجَنَّةِ فَلْيَلْزَمْ الْجَمَاعَةَ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ مَعَ الْوَاحِدِ وَهُوَ مِنَ الِاثْنَيْنِ أَبْعَد»[2].

**ژباړه:** څوک چې غواړي د جنت په منځ کې واوسېږي، نو د مسلمانانو د ټولنې نه دې ځان نه بېلوې، بې شکه شيطان د يوه تن سره ملګرتيا کوي او له دوو څخه لرې ګرځي.

د اسلام فقهاوو د اجماع په حجيت اتفاق کړی،[3] خو د اجماع کوونکو په اړه يو څه اختلاف شته چې وروسته به تشريح شي.

## په منصوصي مسايلو کې د اجماع ګټه

کله کله په داسې يوه مسأله باندې د علماوو اجماع کېږي چې هغه په قران يا سنت ثابته وي، نو کله چې نص يعنې د قرآن يا سنت دليل موجود وي، اجماع ته څه اړتيا ده؟

ددې پوښتنې ځواب دا دی چې کله کله د يو حکم دليل ظني يعنې خبر واحد وي. خو څه وخت چې په دې حکم باندې د فقهاوو اجماع وشي، نو همدا حکم قطعي وګرځي او بيا هيڅ مجتهد نشي کولای چې ددې حکم مخالفت وکړي.

## د اجماع کولو وړ اشخاص

د اجماع وړ اشخاص د رسول اللهﷺ د امت هغه مجتهدين دي چې د شريعت د احکامو پوهه ولري او د پېښې شوې موضوع په اړه کافي تجربه ولري، تر څو د حالاتو له غوښتنې سره سم شرعي احکام راوباسي. په هغو چارو کې چې اجتهاد ته يکې اړتيا نشته د عامو مسلمانانو په اتفاق هم د اجماع ملاتړ کېږي او همدا د جمهورو علماوو نظر دی.

ځينو ويلي يوازې د اصحابو د زمانې اجماع د منلو وړ ده او بس. ځينو دا هم ويلي چې يوازې د مدينې د خلکو اجماع د اعتبار وړ ده[4].

## د اجماع درجې

اجماع څو درجې لري، خو تر ټولو قوي اجماع د اصحابو ده. داسې چې ټول اصحاب په يوه مسأله کې د يو ټاکلي نظر د منلو څرګندونه وکړي. امت ددې ډول اجماع په قطعيت او منلو اتفاق کړی او هيڅوک د اصحابو له صريحې اجماع څخه مخ نشي اړولی.

---

(۱) رواه أحمد ج۱ ص ۳۷۹.

(۲) رواه الترمذي في حديث عن عمر رضي الله عنه في كتاب الفتن باب ما جاء في لزوم الجماعة رقم الحديث ۲۱٦٥ ورواه أحمد ج۱ ص ۲٦.

(۳) په دې هکله وګوره: المستصفى للغزالي ۱۸۹/۱ ومسلم الثبوت للبهاري ۲۱۱/۲ وأصول الفقه لأبي زهرة ۱٥٦.

(٤) فتح الغفار بشرح المنار د ابن نجيم حنفي ليکنه،(دار الکتب العلمية، بيروت) ص ۳٥۱.

په دویمه درجه کې هغه اجماع راځي چې ځینو اصحابو یې د ملاتړ څرګندونه کړې وي او نورو بیا سکوت او چوپ والی غوره کړی وي. دې ته سکوتي اجماع وایي، په دې ډول چې څنې اصحاب په یوه موضوع کې د فتوا ورکولو په ترڅ کې خپل نظر څرګند کړي او نور چوپ پاتې شي. دا ډول اجماع دویمه درجه لري ځکه چې چوپه خوله د وینا په ځای نه ده. همدا راز کله کله ددې لپاره هم خلک چوپ پاتې کیږي چې د نظر په سموالي باور نه لري او یا دا چې په اختلافي مسألو کې د شخړې راپارولو څخه ځان ساتي. دا ډول اجماع که څه هم د حنفیانو په وړاندې قطعي دلیل دی، خو منکر یې کافر نه ګڼل کیږی.

له دې وروسته په درجه کې هغه اجماع ده چې له اصحابو را وروسته علماوو په داسې یوې مسألې اجماع کړې وي چې پخوا پکې اختلاف نه وي شوی. څرنګه چې ددې ډول اجماع په حجیت کې د فقهاوو تر منځ اختلاف دی، نو په دریمه درجه کې راځي. ځینو ویلي چې دا اجماع د سکوتي اجماع سره په درجه کې برابره ده، ځکه چې د دواړو په حجیت کې اختلاف دی.

څلورمه درجه په هغو مسألو اجماع ده چې مخکې پکې اختلاف شوی وي. د درجې پر بنسټ دا تر ټولو ښکته اجماع ده، ځکه چې اختلاف پکې ژور دی.

**مرکبه اجماع:** یو بل ډول اجماع هم شته چې مرکبه یې بولي. هغه داسې چې په یوه زمانه کې د یوې ټاکلې مسألې په اړه علماء په څو ډلو ووېشل شي خو له اختلاف سره سره پر یو اصل باندې اتفاق ولري. بیا له دوي وروسته څوک داسې نظر وړاندې کړي چې د دوی له نظر سره مخالف او له هغه اصل سره هم ټکر ولري چې د پخوانیو علماوو تر منځ پرې اتفاق وو.

ددې بېلګه د میراث هغه مسأله ده چې نیکه پکې د ورور سره میراث وړي. چې په میراث کې د نیکه په پوره برخې او یا له ورور سره په ویش اتفاق شوی. ددې معنا داده چې دواړه ډلې د نیکه په لږ یا ډېر میراث اتفاق لري. اوس که څوک راځي او داسې نوی نظر وړاندې کوي چې نیکه په دې صورت کې د هیڅ میراث مستحق نه دی، نو دا له اجماع څخه وتل دي.[1]

که چېرې د علماوو د اختلاف په ترڅ کې د اتفاق کوم اصل موجود نه وي نو سمه خبره دا ده چې دې ته بیا اجماع نه ویل کیږي.[2]

### د اجماع نقلول

کله چې په یوه زمانه کې اجماع رامنځته شي، نو دغه اجماع یو قطعي دلیل، د دین اصل او د احکامو سرچینه ګڼل کیږي، خو دا اجماع د راتلونکو خلکو لپاره هلته قطعي دلیل

---

(۱) په دې هکله وګوره: فتح الغفار ۳۵۰مخ، الإحکام في أصول الأحکام للآمدي ج۱/۳۳۱ مخ.

(۲) أصول الفقه د محمد أبي زهرة لیکنه ۱٦۷مخ.

کېدای شي چې هغوی ته په متواتر ډول ورسیږي. دا هم اړینه ده چې د ټولو مجتهدینو نظر په متواتر ډول نقل شي، که داسې ونه شول نو اجماع قطعي نه ګڼل کیږي. اجماع هم د حدیث په څېر ده. کله چې څوک له رسول اللهﷺ څخه حدیث واوري نو دا حدیث د هغه لپاره د قرآن په څېر قطعي دلیل دی. همدا راز هغه چا ته چې حدیث په متواتر ډول ورسیږي، یقین یې وربانديې راشي او د دروغو هیڅ احتمال پکې نه وي، نو دا هم قطعي دلیل دی. خو که حدیث د احادو په توګه نقل شي نو غالب ګمان رامنځ ته کوي. اجماع هم همداسې ده او د نقل او سند پر بنسټ قطعي او ظني ګڼل کېدای شي[1].

**د اجماع مثالونه**

۱- علماوو اجماع کړې چې پنځه وخته لمونځونه ادا کول فرض دي. همدا راز د علماوو په دې اجماع ده چې د خوف او امن په دواړو حالتونو کې د سهار لمونځ په سفر او حضر کې دوه دوه رکعته دی.

۲- د دریم خلیفه حضرت عثمان بن عفان په امر قرآن کریم را ټول شو چې اوس مهال زموږ سره هم همدا مصحف دی. ټول اصحاب د خلیفه له دې کار خبر شوي او پر همدې مصحف باندې یې اتفاق کړی او هیڅ مخالفت یې نه دی کړی.

علماوو د اجماع د اثبات او اړوندو مسایلو په اړه کتابونه لیکلي چې د ابن المنذر (کتاب الإجماع) او د ابن حزم ( مراتب الإجماع ) کتابونه د بېلګې په ډول یادولای شو.




۱- د اجماع لغوي او اصطلاحي تعریف بیان کړئ.

۲ - د قرآن او سنت په رڼا کې د اجماع حجیت روښانه کړئ.

۳- په منصوصي امورو کې اجماع څه ته وایي او د اجماع کولو وړ څوک دي؟

۴- د اجماع درجې ذکر او حکم یې بیان کړئ.

۵ – مرکبه اجماع څه ته وایي او حکم یې څه دی؟

۶- که اجماع په متواتر یا احاد ډول نقل شي، څه توپیر سره لري؟

---

( ۱) فتح الغفار ۳۵۵مخ، أصول الفقه د محمد أبي زهرةٌلیکنه ١٦٧مخ.

# قیاس

## د قیاس تعریف

قیاس په لغت کې اندازې او برابرۍ ته وايي.
د اصولو په اصطلاح کې د مشترك علت له مخې غیر منصوصي واقعې ته د منصوصي واقعې حکم ورکول قیاس بلل کېږي.

## د قیاس مثالونه

۱- د جمعې د لمانځه له دويم اذان څخه وروسته د خرڅولو او اخیستلو څخه د الله ﷻ د دې وينا له مخې منعه شوې، چې فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ [الجمعة: ۹]
دا آیت څرګندوي چې د جمعې په ورځ له اذان څخه وروسته اخیستل او خرڅول ناروا دي. د نهي علت دا دی چې څوك د لمانځه په ځای په اخیستلو او خرڅولو بوخت نشي. اجاره هم په بیعې قیاس کېږي او د دويم اذان نه وروسته داسې ناروا ګڼل کېږي، لکه بیع چې ناروا ده. دا ځکه چې په مقیس (اجاره) او مقیس علیه (بیع) دواړو کې یو ډول علت پروت دی او هغه له لمانځه پرته په بل کار بوختېدل دي.
۲- د رسول الله ﷺ ددې وينا پر بنسټ چې فرمايي: «لَا يَرِثُ الْقَاتِلُ شَيْئاً»[1] قاتل وارث له خپل مورث څخه میراث نشي وړلای. موصی له هم په وژل شوي مورث قیاس کېږي. د بېلګې په ډول که یو څوك د بېګڼې په توګه د چا لپاره وصیت وکړي چې له مړينې وروسته به يې د مال يوه برخه هغه ته ورکول کېږي، بیا هغه څوك چې وصیت ورته شوی رامخکې شي او وصیت کوونکی ووژني، نو په دې کار سره د وصیت شوي **مال** له اخیستلو بې برخې کیږي. دا ځکه چې وارث او موصی له، دواړه د مورث او موصي په مال کې د برخې څښتنان دي او دواړه د مورث او موصي د مړينې لامل شوي دي، نو دواړه له میراث څخه بې برخې کیږي.

---

(۱) أخرجه أبوداود في كتاب الديات، باب ديات الأعضاء برقم(٤٥٦٤) ، والبيهقي في السنن الكبرى بنحوه في كتاب الجنايات، باب الرجل يقتل ابنه ج ٨ ص ٣٨.

**د قیاس حجیت**

د څلورو امامانو په شمول جمهورو فقهاوو قیاس شرعي حجت بللی او د هغې منل یې واجب ګڼلي. ددوی دلایل په دې ډول دي:

**لومړی: قرآني دلایل**

الله ﷻ فرمایي: ﴿هُوَ الَّذِي أَخْرَجَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِأَوَّلِ الْحَشْرِ مَا ظَنَنْتُمْ أَنْ يَخْرُجُوا وَظَنُّوا أَنَّهُمْ مَانِعَتُهُمْ حُصُونُهُمْ مِنَ اللَّهِ فَأَتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُمْ بِأَيْدِيهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِينَ فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ﴾ [الحشر: ۲]

**ژباړه**: الله تعالی هغه ذات دی چې د اهل کتابو کافران یې د لومړي ځل راټولولو لپاره له کورونو څخه راویستل، تاسو ګمان نه کاوه چې دوی به ووزي، او دوی ګمان کاوه چې له الله تعالی څخه د دوی منع کوونکي به ددوی قلاګاني وي، نو (د) الله ﷻ (عذاب) له داسې لوري ورته راغی چې دوی یې فکر نه کاوه، او په زړونو کې یې وېره ور واچوله، خپل کورونه یې په خپلو لاسونو او د مسلمانانو په لاسونو ورانول، نو ای د پوهې خاوندانو تاسو هم پند واخلئ.

په دې آیت داسې استدلال شوی

کله چې الله تعالی د یهودو بني نضیر قبیلې ته د پېښو شویو حالاتو او شرمېدلې ماتې یادونه وکړه بیا یې مسلمانان مخاطب کړل او ورته یې وویل، چې که تاسو هم د یهودو په څېر ناوړه عملونه ترسره کړئ، نو هرومرو به د هغوی په څېر د ناوړه پایلو او سختو ماتو سره مخ شئ. دلته په اعتبار امر شوی، او له اعتبار څخه دلته د دوو حالاتو تر منځ مقایسه او برابروالی مقصد دی چې د ورته والي په صورت کې یو ډول حکم ورکړی شي او په قیاس کې هم همدا څیز موجود دی. په قیاس کې هم مجتهد د اصل او فرعې تر منځ ورته والی (ګډ علت)پیدا کوي او د اصل حکم فرعې ته ورکوي.

**له سنتو څخه دلایل**

عبدالله بن عباس رضي الله عنهما یو حدیث روایت کړی چې په دې ډول دی: یو چا له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه: مور مې حج نه وو کړی او مړه شوه، آیا که زه له هغې څخه حج وکړم قبول به شي؟ هغه مبارک ورته وویل: که په مور دې پور وای او تا پرې کړی وای، نو آیا نه به قبلېده؟ نو امر یې ورته وکړ چې ورڅخه وکړه.[1]

(۱) أخرجه النسائي في كتاب مناسك الحج، باب : الحج عن الميت الذي لم يحج برقم (٢٦٣٤).

په دې حديث د قياس د حجيت لپاره داسې استدلال کيږي: رسـول اللهﷺ د الله تعـالى پـور د بنده په پور قياس کړی. نو قياس د رسول الله ﷺ په عمل مشروع شو.

**له آثارو څخه دلايل**

عمر بن الخطابؓ په خپل ليک کې ابو موسى اشعري رضي الله عنه ته داسې ليکلي: «... الْفَهْمَ الْفَهْمَ فِيمَا يَخْتَلِجُ فِي صَدْرِكَ مِمَّا لَمْ يَبْلُغْكَ فِي الْقُرْآنِ وَالسُّنَّةِ فَتَعَرَّفِ الأَمْثَالَ وَالأَشْبَاهَ ثُمَّ قِسِ الأُمُورَ عِنْدَ ذَلِكَ وَاعْمِدْ إِلَى أَحَبِّهَا إِلَى اللَّهِ وَأَشْبَهِهَا فِيمَا تَرَى»[1] **ژباړه:** که د هغه څـه پـه اړه سـتا په زړه کې شک پيدا شو چې حکم يې په کتاب او سنت کې نشته، نو له خپلې پـوهې نـه کار اخله، يو بل ته ورته مسألې ولټوه او سره پرتله يې کړه. هر نظر چې درتـه د اللهﷻ پـه وړاندې غوره او حق ته نژدې ښکاره شو پر هغې عمل وکړه.

**له اجماع څخه دلايل**

ښکاره ده چې اصحابو رضى الله عنهم قياس منلـی او پـه ډېـرو مـسايلو کـې يـې وربانـدې عمل کړی. پـر قيـاس د عمـل کولـو موضـوع د هغـوی تـر منـځ مـشهوره وه او هيڅـا يـې مخالفت ندی کړی چې دا د قياس پر حجيت د هغوی اجماع بلل کيږي.

مثالونه يې په دې ډول دي:

اصحابو رضي الله عنهم د مسلمانانو د خلافت لپاره ځکه ابوبکر زيات مستحق وګڼلو چـې د پيغمبر عليه السلام په ژوند کې د لمانځـه د امامـت لپـاره تـر نـورو زيـات مـستحق ګڼـل شوی و، نو د دولت د چارو امامت د لمانځه پر امامت قياس شو.

عمر بن الخطابؓ ابو موسى اشعريؓ ته په قياس کولو امر کړی.

عليؓ په قتل کې د شريک ټولي قصاصول په غلا کې د شريک ټولي پـه لاس غوڅولـو قياس کړی[2].

**د قياس ارکان**

قياس څلور رکنه لري او په دې ډول دي: اصل، فرع، حکم او علت.

---

(١) سنن دارقطنى برقم (١٥) و السنن الكبرى للبيقهى برقم (٤٠٨٤٤).

(٢) أخرجه عبد الرزاق في المصنف في كتاب العقول ، برقم (١٨٠٧٧).

**اصل**

د اصولو په اصطلاح کې هغې پېښې ته چې په حکم کې يې نص يا اجماع راغلې وي، د قياس اصل ويل کېږي چې "مقيس عليه" هم ورته وايي. يعنې هغه مسأله چې نور ورباندې قياس کېږي، حکم يې بايد په نص يا اجماع او يا هم په دواړو ثابت وي.

**فرع**

فرع هغې پېښې ته وايي چې د حکم په اړه يې په نص او اجماع کې څه نه وي راغلي او د حکم د معلومولو لپاره په بله پېښه قياس کېږي. فرعې ته "مقيس" هم ويل کېږي.

د بېلګې په توګه مونږ د يوې نوې پېښې د حکم په اړه په نصوصو يعنې قرآن او سنت کې پلټنه وکړه خو د نوموړې پېښې حکم مو ونه موند. البته همدې پېښې ته ورته يوه بله پېښه مو پيدا کړه چې حکم يې په نص يا اجماع کې موجود و. دغه مهال مونږ نوې پېښه چې حکم يې په نص او اجماع کې نشته پر هغې پېښې قياس کړه چې حکم يې په نص کې موجود وو. نوې پېښې ته فرع ويل کېږي او پخوانۍ پېښه چې په نص کې حکم لري "اصل" بلل کېږي.

**حکم**

حکم د الله تعالی هغه خطاب ته ويل کېږي چې له مکلفو وګړو څخه د کوم کار کول يا نه کول غواړي يا يې مباح کوي يا کوم څيز د بل کار لپاره شرط، سبب، مانع او... ګرځوي.

وجوب، ندب، اباحت، کراهت، تحريم، صحت، فساد او داسې نور د حکم ډولونه دي. يعني د وجوب، حرمت، کراهت او بل هغه حکم، چې په نص يا اجماع سره په اصل کې ثابت شوی هغې فرعې ته هم ورکول کېږي چې د نص حکم پکې موجود نه دی.

**علت**

علت هغه ښکاره او معلوم صفت ته ويل کېږي چې د همدې صفت د شتون له امله شارع حکم کړی وي.

په مقيس عليه کې هغه علت چې شارع يې له امله حکم کړی وي، که په فرع کې موجود شي نو دواړه يو حکم لري، ځکه چې علت د حکم معيار دی او په دواړو کې يو شان موجود دی.

**د علت مثال**

عباده بن صامت رضی الله عنه روايت کوي: قَـالَ رَسُـولُ اللَّـهِﷺ «**الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ وَالْمِلْحُ بِالْمِلْحِ مِثْلاً بِمِثْلٍ سَوَاءً بِسَوَاءٍ يَدًا بِيَدٍ فَإِذَا اخْتَلَفَتْ هَذِهِ الأَصْنَافُ فَبِيعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ**»(١).

رسول اللهﷺ فرمايلي: سره زر په سرو زرو، سپين زر په سپينو زرو، غنم په غنمو، وربشې په وربشو، خرما په خرما او مالگه په مالگه يو برابر او لاس په لاس پلورل کيږي، او کله چې جنسونه مختلف شي، نو بيا مو چې څنگه خوښه وي هغسې يې پلورئ، خو چې لاس په لاس وي.

دې مبارک حديث دا څرگنده کړې چې په دې بيان شويو شيانو کې سود کيږي، پوښتنه داده چې آيا په جوارو او وريجو کې سود کيږي که نه؟

که وروستيو څلورو شيانو ته ځير شو نو وينو چې پيمانه او د جنس يووالی علت دی او دا علت په غنمو او وريجو کې هم شته، نو د غنمو او وريجو حکم هم د نوموړو څلورو شيانو په څېر دی. د نوموړو څلورو شيانو حکم دا وو چې يو پر بل يې بدلول په نېټه او زياتوالي حرام وو.

په دې مسأله کې غنم، وربشې، جوار او مالگه اصل دي او هر يو له نوموړو توکو څخه د اصل کېدو وړتيا لري.

همدا راز جوار او وريجې فرع دي.

حکم يې په نېټې او زياتوالي سره ددې شيانو د خرڅولو حراموالی او علت يې پيمانه او د جنس يووالی دی.




١- د قياس لغوي او اصطلاحي تعريف وکړئ او دوه مثالونه يې بيان کړئ.
٢- د قياس د حجيت په اړه د دلايلو په رڼا کې وغږيږئ.
٣- د قياس ارکان تعريف کړئ او يو مثال يې هم ووایاست.

---

( ١) أخرجه مسلم ، باب الصرف و بيع الذهب بالورق نقدا ، الرقم (٤١٤٧).

**دري دېرشم لوست:**

# اختلافي دلایل [1]

اختلافي هغو دلایلو ته ویل کېږي چې فقهاوو د هغې په حجیت او دلیل ګڼلو کې اختلاف کړی وي. اختلافي دلایل په لنډ ډول داسې یادوو:

۱- استحسان

۲- د صحابي مذهب

۳- مرسله مصالح

۴- استصحاب

۵- عرف

**لومړی- استحسان**

استحسان په لغت کې ښه ګڼلو ته وايي.

د استحسان د اصطلاحي تعریف په اړه د فقهاوو تر منځ اختلاف دی. حنفیانو استحسان په دوو جلا معناګانو استعمال کړی:

۱- خفي قیاس چې د جلي قیاس په مقابل کې وکارول شي.

۲- هغه ځانګړی دلیل چې د ښکاره قیاس په مقابل کې واقع شي او له عمومي قاعدې څخه کوم شی استثناء کړي. دا ځانګړی دلیل کله نص، کله اجماع او کله هم یو ضرورت وي.

**د استحسان مثالونه**

۱- حنفي فقهاوو ویلي: که وقف کوونکی یوه کرنیزه ځمکه وقف کړي نو د اوبو خور او تګ راتګ حق هم له یادولو پرته د استحسان په بنسټ په وقف کې داخلیږي. د قیاس غوښتنه داده چې د بیعې په څېر دلته هم له یادولو پرته دا شیان په وقف کې داخل نشي. ځکه چې ځمکه او د تګ راتګ حق دواړه جلا شیان دي.

استحسان غوښتنه کوي: د ځمکې د وقف کولو موخه داده چې له هغې ګټه واخیستل شي او د تګ راتګ له حق پرته له ځمکې ګټه نشي اخیستل کېدای، نو د تګ راتګ حق له یادولو پرته په وقف کې داسې شاملیږي، څنګه چې په اجاره کې له یادولو پرته شامل ګڼل کیږي.

په دې ډول بیعې باندې د وقف قیاس کول ښکاره او جلي قیاس دی او پر اجارې یې قیاس کول خفي قیاس دی، خو دلته خفي قیاس په جلي قیاس ځکه غوره وګڼل شو چې د خفي قیاس دلیل قوي دی.

۲- په معاملاتو کې یوه عامه قاعده ده چې د معدوم یا ناپیدا شوي شيز پلورل په دې بنسټ ناروا دي چې رسول اللهﷺ فرمايلي: **«وَلاَ تَبِعْ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ»**[1]. خو ددې سره سره د سَلَمَ بیع روا ده، ځکه چې رسول اللهﷺ د سَلَمَ بیع روا ګڼلې[2].

په فقه کې یوه منل شوې قاعده ده چې امانت ساتونکی ضامن نه ګڼل کیږي، خو مشترک اجیر سره له دې، چې د امانت ساتونکی دی، له دې قاعدې څخه مستثنی دی.

دا ځکه چې د امانت په ساتلو کې خلک کمی کوي او خلک امانت ساتلو ته اړتیا لري.

نو له دې کبله مستأجر ضامن ګڼل کیږي. البته که مال د کوم اسماني آفت په واسطه لکه د اورلګیدنې یا زلزلې په واسطه له منځه ولاړ شي نو مستأجر ضامن نه ګڼل کیږي.

**شافعي فقهاء استحسان داسې تعریفوي:** استحسان د مجتهد هغه نظر ته وایي چې پر نص، اجماع او قیاس د استدلال کولو پرته یې د خپل عقل پر بنسټ ورکوي.

ددوی په وړاندې په استحسان عمل کول ناروا دي.

**فعالیت**

د استحسان په اړه د حنفي او شافعي فقهاوو تعریفونه سره پرتله کړئ او دا روښانه کړئ چې ددوی تر منځ اختلاف حقیقي دی که لفظي؟

**دویم- د صحابي مذهب**

د اصولو د عالمانو په وړاندې صحابي هغه چاته ویل کیږي چې له رسول اللهﷺ سره مخامخ شوی وي، پر هغه یې ایمان راوړی وي، له هغه څخه یې زده کړه کړې وي او دومره اوږده ملګرتیا یې ورسره کړې وي چې د عرف له مخې د ملګري نوم ورته ورکړی شي.

---

( ۱) أخرجه أبو داود في سننه، باب في الرجل يبيع ما ليس عنده رقم الحديث : (۳۵۰۵).

(۲) أخرج البخاري في صحيحه، باب السلم في وزن معلوم، رقم الحديث (۲۱۲۵)، عن ابن عباس رضي الله عنهما قال: قدم النبي صلى الله عليه و سلم **المدينة** وهم يسلفون بالتمر السنتين والثلاث فقال ( من أسلف في شيء ففي كيل معلوم إلى أجل معلوم ).

د محدثینو له نظره صحابي هغه چا ته ویل کیږي چې د پیغمبر علیه السلام سره مسلمان مخامخ شوی وي او مسلمان مړ شوی وي.

په دې بحث کې له صحابي څخه د اصولیانو صحابي مقصد دی.

**د صحابي مذهب څه معنا؟**

له دې ټکي څخه مقصد د صحابي هغه فتوا او یا هغه شرعي حکم دی چې په کومه قضیه کې یې د نص او اجماع د نه شتون په صورت کې ورکړې وي.

**د صحابي د مذهب حجیت**

اصولیانو په دې اتفاق کړی چې د یوه صحابي مذهب پر بل صحابي حجت نه گڼل کیږي. همدا راز اصولیانو په دې هم اتفاق کړی چې که صحابي له اهل کتابو څخه په روایت کولو مشهور نه و نو په غیر اجتهادي مسایلو کې یې نظر حجت او دلیل دی. په همدې توگه په هغه مسأله کې هم د صحابي قول حجت دی چې نورو اصحابو ورسره اختلاف نه وي کړی، خو که اصحابو په کومه اجتهادي مسأله کې سره اختلاف کړی وي نو علما پدې اړه بیا جلا نظرونه لري چې مهم یې دوه نظره دي:

لومړی: امام ابوحنیفه، امام مالك او په یو روایت کې امام احمد او نور پدې نظر دي چې د صحابي مذهب په مطلق ډول حجت دی.

دویم: امام شافعي، په یو روایت کې احمد، له حنفي فقهاوو څخه کرخي او نور په دې نظر دي چې د صحابي مذهب حجت نه دی. ځکه حجیت یو قوي دلیل ته اړتیا لري او دلته قوي دلیل نشته.




۱- د حنفیانو او شافعیانو له نظره د یو مثال په ترڅ کې استحسان تعریف کړئ.

۲- د اصولیانو او محدثینو له نظره صحابي چا ته ویل کیږي؟

۳- د صحابي د مذهب په اړه د علماوو نظریات په هر اړخیز ډول بیان کړئ.

# اختلافي دلایل [۲]

**دريم: مرسله مصالح**

**د مرسله مصالحو تعريف**

«**المصلحة**» په لغت کې ګټې او سم ته وايي او د فساد ضد دی. « **المرسلة**» پرېښودل شوي ته وايي.

د اصولو د عالمانو په اصطلاح کې مرسله مصالح هغو ګټو او مصلحتونو ته وايي چې شريعت نه معتبر ګڼلي وي او نه يې رد کړي وي.

دوی ته مرسله يا پرېښودل شوي، ځکه وايي چې په کولو يا نه کولو يې شرعي دليل وجود نه لري.

د مرسله مصلحت مثال:

د زندان جوړول، د پيسو چاپول او د قرآن کريم راټولول د مرسله مصالحو مثالونه دي.

**د مصالحو ډولونه**

مصالح په درې ډوله دي.

أ. معتبر مصلحتونه: هغه مصلحتونه دي چې کوم شرعي دليل معتبر ګڼلي وي، لکه: په قصاص سره د انسانانو د ژوند ساتنه. دا مصلحت د قرآن کريم دې آيت معتبر ګڼلی دی: ﴿وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ [البقرة: ۱۷۹]

ب. مردود مصلحت: دا هغه ګټې او مصلحتونه دي چې کوم شرعي دليل بې اعتباره ګڼلي وي، لکه د شرابو او قمار ګټې چې د قرآن کريم دې آيت بې اعتباره ګڼلې: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْأَنْصَابُ وَالْأَزْلَامُ رِجْسٌ مِنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [المائدة: ۹۰]

ج. پرېښودل شوي يا مرسله مصالح: ددې مصلحتونو په اړه مو لږ مخکې رڼا واچوله.

**څلورم: استصحاب**

استصحاب په لغت کې ملګرتيا او يوځای والي ته وايي.

د اصولو د عالمانو په اصطلاح کې د يو شي تر هغې پر پخواني حالت پرېښودلو ته وايي څو يې د بدلون لپاره دليل پيدا شي.

**د استصحاب مثال**

څوک چې اودس وکړي او بيا وروسته د اودس په ماتېدلو کې شکي وي، نو دا شخص اودس لرونکی شمېرل کيږي. همدا راز که له يو مجتهد نه د يو عمل په اړه پوښتنه وشي،

خو مجتهد له پلټنې وروسته ددې عمل د کولو يا نه کولو په اړه کوم شرعي دليل پيدا نه کړي نو په رواوالي به يې حکم کوي. ځکه چې اصل په شيانو کې اباحت دى. الله ﷻ لومړى ټول شيان مباح پيدا کړي او ددې خبرې دليل د قرآن کريم دا آيت دى: ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُمْ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا﴾ [البقرة: ٢٩]

**مقلوب يا سرچپه استصحاب:** دې ته وايي چې يو شى په تېره زمانه کې هم په هغه حالت وګڼل شي په کوم چې په حاضر وخت کې دى.

**مثال**

که چېرې د ژرندې اجاره اخيستونکى او اجاره ورکوونکى د تېرې شوې زمانې په اړه په ژرنده کې د اوبو د شتون په اړه اختلاف وکړي او شاهدان نه وي، نو ژرنده به وکتل شي. که چېرې په ژرنده کې اوبه وې، نو پخوانى وخت به په اوسني وخت قياس شي او د اوبو شتون به په تېره شوې زمانه کې هم ثابت شي. خو که چېرې په ژرنده کې اوبه نه وې نو په تېره شوې زمانه کې به هم د اوبو په نشتوالي حکم وشي، دې ته سرچپه استصحاب وايي او د شرعي حکم د پېژندلو لپاره د مجتهد وروستۍ وسيله همدا ده.

**پنځم: عرف**

د عرف تعريف: عرف په لغت کې آشنا او ښېګڼې ته ويل کېږي.

عرف په اصطلاح کې هغې وينا، عمل او يا پرېښودلو ته وايي چې خلکو ښه ګڼلى وي او ورباندې عمل کوي. عرف ته عادت هم ويل کېږي.

د عملي عرف مثال هغه خرڅول او اخيستل دي چې له وينا کولو پرته په چوپه خوله تر سره کېږي.

د قولي عرف مثال د «ولد» ټکى دى چې له جينکو پرته يوازې هلکانو ته کارول کېږي، په داسې حال کې چې دا ټکى دواړو ته شامل دى. همدا راز د عرف له مخې خلک کب ته غوښه نه وايي حال دا چې کب هم يو ډول غوښه ده.

عرف داسې يوه کړنه ده چې په رامنځته کولو او ښه ګڼلو کې يې د ټولنې عام او خاص خلک لاس لري، خو اجماع بيا هغه څه دي چې يوازې مجتهدين پرې اتفاق کوي او په رامنځته کولو کې يې عام خلک کومه ونډه نه لري.

**د عرف ډولونه**

عرف په دوه ډوله دى: صحيح عرف او فاسد عرف.

صحيح عرف: صحيح عرف هغه ته ويل کېږي چې د کوم شرعي دليل مخالف نه وي. حلال نه حراموي او حرام نه حلالوي. لکه د استصناع عقد يا مهر په مؤجل او معجل ډولونو ويشل.

فاسد عرف: فاسد عرف هغه عرف ته ویل کیږي چې حلال حرام کړي او یا حرام حلال کړي، لکه په غمونو او ښادیو کې یو لړ ناروا دودونه او رواجونه او د سود خوړلو او جوارۍ کولو رواج کېدل.

### د عرف حکم

مجتهد باید د شرعي حکمونو په راویستلو کې صحیح عرف په پام کې ونیسي. همدا راز قاضي باید د پرېکړې په مهال عرف له پامه ونه غورځوي.

عرف د زمانې په تېرېدو سره بدلون مومي. ډېر ځلې د زمانې تېرېدل او د عرف بدلون ددې لامل شو چې د امام ابوحنیفه او د هغه د شاګردانو تر منځ اختلاف رامنځته شي. همدا راز امام شافعي، چې کله له بغداد څخه مصر ته ولاړ، نو د مصر د عرف د بدلون پر بنسټ امام شافعي د ډېرو مسایلو په اړه خپل نظر بدل کړ. له همدې امله امام شافعي دوه مذهبه لري چې د نوي او زوړ مذهب په نامه یادېږي.

امام مالک بیا ډېر احکام د مدینې د خلکو د عمل په بنسټ بنا کړي.

د فاسد عرف په اړه باید وویل شي چې دې ډول عرف ته ارزښت ورکول روا نه دي. ځکه چې فاسد عرف د شرعي دلیل سره ټکر لري.




۱- د مصلحت لغوي او اصطلاحي تعریف له یو مثال سره بیان کړئ.

۲- د مصلحت ډولونه له مثالونو سره بیان کړئ.

۳- د یو مثال په ترڅ کې د استصحاب لغوي او اصطلاحي تعریف روښانه کړئ.

۴- سرچپه یا مقلوب استصحاب تعریف او مثال یې بیان کړئ.

۵- د استصحاب حجیت بیان کړئ او هم ووایاست چې استصحاب د شرعي دلایلو تر منځ په کومه درجه کې قرار لري؟

۶- د عرف لغوي او اصطلاحي تعریف وکړئ او د قول او عمل پر بنسټ یې ډولونه د مثال سره بیان کړئ.

۷- د صحت او فساد پر بنسټ د عرف ډولونه بیان او حکم یې روښانه کړئ.

# له نصوصو څخه د استدلال طريقې

قرآن کريم او نبوي احاديث په عربي ژبه دي. موږ هغه وخت په سمه او بشپړه توګه د قرآن او سنت په حکمونو پوهېدلای شو چې د عربي ژبې په اصولو او د استدلال په طريقو پوه شو. له همدې امله د اصولو علماوو د عربي ژبې د جملو د معناګانو او دلالتونو په اړه پراخې پلټنې کړي. ددې پلټنو په بنسټ يې داسې قواعد او اصول رامنځته کړي چې پر مټ يې د شرعي نصوصو سمه پوهه تر لاسه کېدای شي.

په دې لوستونو کې به په همدې قواعدو بحث وکړو

**خاص او د هغه دلالت**

**د خاص تعريف:** خاص په لغت کې يوازې او ځانګړي ته وايي او د اصولو د عالمانو په اصطلاح کې هر هغه لفظ چې يوازې په يوه معنا، پرته له دې چې افرادو ته يې وکتل شي، دلالت وکړي، خاص بلل کېږي.

**د تعريف تشريح:** که لفظ په يو شخص باندې دلالت وکړي لکه احمد او يا په نوع کې په يو فرد باندې دلالت وکړي، لکه سړی او يا په جنس کې په يو فرد باندې دلالت وکړی، لکه انسان يا هم په ګڼو ټاکلو افرادو باندې دلالت وکړي، لکه درې او لس، نو خاص بلل کيږي.

خاص لکه څنګه چې په ذواتو، لکه احمد او موټر دلالت کوي، همداسې په معناګانو لکه پوهه، صبر او رښتينولی هم دلالت کوي.

د خاص ضد عام بلل کيږي چې بيان به يې وروسته راشي.

**د خاص مثالونه**

د قسم په کفاره کې الله ﷻ فرمايي: ﴿ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ ﴾ [المائدة: ٨٩]

١- په دې آيت کې د ثلاثة لفظ خاص دی، په قطعي ډول پخپله معنا دلالت کوي او د زياتوالي او کموالي احتمال نه لري. نو آيت دا معنا ورکوي: چا چې غلام د آزادولو لپاره ونه موند يوازې درې ورځې روژه نيول پرې واجب دي او بس.

۲- رسول اللهﷺ فرمايي: «فِيْ لَا يَرِثُ الْقَاتِلُ شَيْئاً». دې حديث د پسونو د زکات نصاب څلوېښت وټاکه او دا يې هم وويل چې په څلوېښتو پسونو کې يو پسه زکات کېږي. څرنګه چې دا دواړه لفظونه (څلوېښت او يو)خاص دي، نو هيڅ زياتوالی او کموالی پکې نشي کېدای.

خو که داسې دليل را پيدا شي چې د خاص د تأويل غوښتنه کوي، نو په خاص کې به تأويل کيږي، لکه حنفي فقهاوو چې ويلي: په دې حديث کې مقصد پسه او يا د هغه قيمت دی، نو د دواړو ورکول صحيح دي.

**د خاص حکم:** کله چې په يو نص کې خاص لفظ راشي، نو په قطعي ډول پخپله معنا دلالت کوي، مګر دا چې يو دليل د تأويل يا بلې معنا غوښتنه وکړي.

مطلق، مقيد، أمر او نهی د خاص ډولونه دي.

**مطلق**

مطلق هغه لفظ دی چې په غير مقيد فرد باندې دلالت کوي، لکه سړی او مرغه.

**د مطلق حکم**

تر هغې چې د مطلق د مقيد کېدو لپاره دليل موجود نشي، مطلق پخپل اطلاق باندې پاتې کيږي. د بېلګې په ډول د الله ﷻ په دې وينا کې: ﴿وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا﴾ [المجادلة: ۳] د رقبه لفظ مطلق دی او د ايمان قيد پکې نشته، په دې بنسټ د خطا قتل په اړه د قرآن ددې آيت ﴿وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ﴾ [النساء: ۹۲] له امله به نوموړې مطلقه رقبه د ايمان په شرط نه مقيده کيږي.

**مقيد**

مقيد هغه لفظ ته وايي چې په مقيد فرد باندې دلالت وکړي، لکه مسلمان سړی او سپين مرغه.

**د مقيد حکم**

مقيد چې په کوم شي دلالت کوي په هغه عمل کول واجب دي. د بېلګې په ډول د النساء سورت پدې آيت کې: ﴿وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ إِلَّا أَنْ يَصَّدَّقُوا﴾ [النساء:۹۲] د خطا قتل په کفاره کې د مؤمن غلام ازادول فرض شوي. په دې آيت ﴿فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ﴾ کې غلام د ايمان په صفت سره مقيد شوی ځکه نو د کافر غلام په ازادولو سره کفاره نه ادا کيږي او بايد چې په مقيد باندې عمل وشي.

**أمر**

له چا څخه د يو کار د کولو غوښتل پـه داسې بڼـه چـې غوښـتونکی ځـان لـوړ وګڼـي، د اصولو په اصطلاح کې امر بلل کېږي. په دې بنسټ التماس او دعـا امـر نـه بلـل کېـږي، ځکه چې التماس د دوو هم رتبه کسانو تر منځ صورت مومي او دعا له لـوړ رتبـه شـخص څخه د ټيټ رتبه شخص غوښتنې ته وايي، ځکه نو يو هم امر نه ګڼل کيږي.

**د امر حکم**

امر د خاص يو ډول دی او تر څو چې اړوونکې نـښه موجـوده نـشي پـه وجـوب دلالـت کوي، نو د الله ﷻ دا وينا چې: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ﴾ [الجمعة: ۹] د آذان پر مهال د جمعې لمانځه تـه پـه بيـړې کولـو حکـم کوي.

خو که داسې نښه او قرينه وموندل شي چـې لـه خپلـې معنـا څخـه د امـر د اړولـو غوښـتنه کوي، نو د امر معنا به هماغه وي چې قرينه يې غوښتنه کوي، لکه د الله پاک دا وينـا چـې فرمايي: ﴿فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ فَانْتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ وَابْتَغُوا مِنْ فَضْلِ اللَّهِ﴾ [الجمعة: ۱۰] د جمعې له لمانځه وروسته په ځمکه کې ګرځېدل او د حـلال رزق پلټنه د الله پاک په پيرزوينه يـو مباح کار دی. که چېرې دا امر د وجوب لپاره وګڼل شي، نـو اباحـت بـه پـه تکليـف بـدل شي او په آيت کې ياده شوې د الله ﷻ پيرزوينه به بې معنـا پـاتې شـي. پـه حقيقـت کـې د پيرزوينې يادونه هغه اړوونکې قرينه ده چې امر يې له وجوب څخه اباحت ته اړولی.

**نهې**

څوک له يوو کار څخه په داسې بڼه منع کول چې منع کوونکی ځان لوړ وګڼـي دا منـع د اصولو په اصطلاح کې نهې بلل کېـږي.

**د نهې حکم**

کوم شی چې د نهې په واسطه په مطلق ډول منع شي، ځـان سـاتل تـرې واجـب او ترسـره کول يې حرام دي، ځکه چې نهې د خاص له ډولونو څخه ده او يوازې په تحـريم دلالـت کوي. لکه د الله ﷻ دا وينا: ﴿وَلاَ تُنكِحُواْ الْمُشِرِكِينَ حَتَّى يُؤْمِنُواْ﴾ [البقرة: ۲۲۱] چې له مـشرک سړي سره د واده کولو په حرمت دلالت کوي. همدا راز د قرآن کـريم دا آيـت: ﴿وَلاَ يَحِلُّ

﴿لَكُمْ أَن تَأْخُذُواْ مِمَّا آتَيْتُمُوهُنَّ شَيْئًا﴾ [البقرة: ٢٢٩] له مېرمنې څخه د مهر د بېرته اخیستلو په حرمت دلالت کوي.

که چېرې داسې قرینه موندل شي چې نهي له خپلې ټاکلې معنا ( منع کول ) څخه واړوي، نو د نهي معنا له قرینې سره سم بدلون مومي، لکه د قرآن کریم دا آیت چې فرمايي: ﴿رَبَّنَا لاَ تُزِغْ قُلُوبَنَا﴾ [آل عمران:٨] په دې آیت کې نهي د دعا په معنا ده، ځکه دلته له لوړ رتبه څخه د ټيټ رتبه غوښتنه ده او غوښتونکی ځان ټيټ بولي.

## عام او د هغه دلالت

**د عام تعریف:** عام هغه لفظ ته وايي چې د اصلي لغوي معنا له مخې په ډېرو افرادو باندې په شامل ډول (په يو وخت)دلالت وکړي.

**عام لفظونه:** د اصولو علماوو له پلټنې وروسته هغه لفظونه او عبارتونه په ډاګه کړي چې د اصلي وضعي معنا له مخې په عموم دلالت کوي. مهم يې په لاندې توګه تشریح کوو:

١- د کل او جمیع لفظ: رسول اللهﷺ فرمايي: (كُلُكُمْ رَاعٍ وَكُلُكُمْ مَسْؤُوْلُ عَنْ رَعْيَتِهِ)

همدا راز الله پاک فرمايي: ﴿خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الأَرْضِ جَمِيعاً﴾ [البقرة: ٢٩]

٢- هغه مفرد چې د جنس په تعریفي « الف، لام» سره معرفه شوی وي، لکه د قرآن کریم دا آیت: ﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِئَةَ جَلْدَةٍ﴾ [النور: ٢].

٣- هغه جمع چې د جنس په تعریفي «الف، لام» سره معرفه شوې وي، لکه د بقرة سورت دا آیت: ﴿وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلاَثَةَ قُرُوَءٍ﴾ .

٤- د (ما) او (من) ټکي لکه د قرآن کریم په دې آیت کې: ﴿وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَئًا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ﴾ [النساء: ٩٢] په همدې ډول د قرآن کریم دا آیت: ﴿وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَاء ذَلِكُمْ أَن تَبْتَغُواْ بِأَمْوَالِكُم﴾ [النساء: ٢٤]

٥- نکره چې د نفي په سیاق کې راشي، لکه د رسول اللهﷺ دا وینا: «لَا ضَرَرَ وَ لَاضِرَارَ»[١].

په همدې ډول د قرآن کریم دا آیت: ﴿لاَ إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ﴾[البقرة: ١٥٦].

---

(١)- أخرج البيهقي في السنن الكبرى عن عمرو ابن يحيى المازنى عن أبيه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال لا ضرر ولاضرار ج ٦ ص ١٥٧.

**د عام حکم**

فقهاء په دې متفق دي چې عام خپلو ټولو افرادو ته ورشامليږي. کـه د ځينـو افـرادو پـه تخصيص دليل ونه موندل شي، نو په ټولو افرادو د عام حکم تطبيقيږي. همـدا رنګـه فقهـاء په دې هم يو دي چې که د عام ځينې افراد د کوم دليل له مخې خاص شـي، نـو پـه پـاتې افرادو يې دلالت ظني ګرځي او په بل ظني دليل يې تخصيص روا دی.

له تخصيص نه وړاندې د عام په دلالت کې د فقهاوو اختلاف دی چې آيا قطعي دی کـه ظني؟ هم دا چې په ظني دليل تخصيص کېدای شي او که نه؟

د حنفي عالمانو په شمول د فقهاوو يوه ډله وايي: هغـه عـام چـې تخـصيص شـوی نـه وي، دلالت يې قطعي دی، نو په ظني دليل يې تخصيص روا نـه دی. لـه همـدې املـه پـه قـرآن کريم کې راغلی عام په احادو حديثونو نه تخصيص کيږي، ځکه چې تخـصيص د نـسخې يو ډول دی او د قرآن نسخ په آحادو حديثونو روا نه ده.

د شافعي عالمانو په شـمول د فقهـاوو يـوه بلـه ډلـه پـه دې نظـر ده چـې عـام لـه تخـصيص وړاندې او وروسته په دواړو حالتونو کې ظني الدلالت دی. ځکه نو په دواړو حالتونو کـې يې په ظني دليل تخصيص کول روا دي.

په همدې بنسټ چې له تخصيص وړاندې د عام په دلالت کې اختلاف دی. فقهاوو پـه يـو شمېر زياتو مسألو کې اختلاف کړی. د يوې ډلې په نظر پـه قـرآن کـې ټـول راغلـي عـام الفاظ قطعي الدلالت دي او په آحادو حديثونو يې تخصيصول روا نـه دي. د بلـې ډلـې پـه نظر نوموړي الفاظ ظني الدلالت دي او په آحادو حديثونو يې تخصيص جايز دی.




۱- د خاص لغوي او اصطلاحي تعريف ووایاست او د خاص العين، خاص النوع او خاص الجنس لپاره مثالونه وړاندې کړئ.

۲- د خاص حکم بيان کړئ.

۳- د لاندې اصطلاحاتو معنا او حکم د يو مثال سره روښانه کړئ.

مطلق، مقيد، امر او نهي.

۴- عام تعريف کړئ او هم د عام څلور الفاظ د مثال سره بيان کړئ.

۵- د عام حکم څه دی؟ ددې اختلاف په اړه د فقهاوو نظريات بيان کړئ.

# شرعي حکم (۱)

الله ﷻ انسان پیدا کړ او د شریعت په رالېږلو یې د ژوند نظام، حلال او حرام ورته روښانه کړل، تر څو په عدالت پرېکړه وکړي. اسلامي شریعت په حقیقت کې د شرعي احکامو ټولګه ده. نو راځئ چې لومړی په دې ځان وپوهوو چې حکم څه ته وايي او کوم کوم ډولونه لري؟

### د حکم تعریف

حکم په لغت کې منعې ته وايي او قاضي ته ځکه حاکم ویل کېږي چې خلک له ظلم څخه منعه کوي.

د اصولیانو تعریف: حکم د الله تعالی هغه خطاب ته ویل کېږي چې له مکلفو وګړو د کوم کار کول یا نه کول غواړي، یا یې مباح کوي، یا کوم شیز د بل کار لپاره شرط، سبب، مانع او... ګرځوي.

### د تعریف شننه

د الله ﷻ خطاب: خطاب په لغت کې د دوو کسانو تر منځ خبرو ته وايي چې د یو بل پوهولو لپاره ترسره کېږي. دلته ورڅخه مقصد همدا دی. د (الله ﷻ) په لفظ سره د بل چا سره خبرې له دې تعریف څخه وځي.

د مکلفینو کړه وړه: هغه عقیده، وینا او عمل چې له مکلف مسلمان څخه صادرېږي.

مکلف: بالغ، عاقل چې په خبرو پوهېږي.

غوښتنه: د امر په ټکو د څه کولو غوښتل او د نهي په ټکو منع کول.

اباحت یا اختیار ورکول: د یو کار کول او نه کول، یو ډول ګڼل.

### د حکم مثالونه

۱- د کولو غوښتنه: الله ﷻ فرمايي: ﴿أَوْفُواْ بِالْعُقُودِ﴾ [المائدة: ۱] په دې خطاب کې د ژمنو د پوره کولو غوښتنه ده چې د مکلفینو فعل دی.

۲- د نه کولو غوښتنه: الله پاک فرمايي: ﴿لَا يَسْخَرْ قَومٌ مِّن قَوْمٍ﴾ [الحجرات: ۱۱] په دې خطاب کې له ملنډو وهلو څخه د خلکو منع کول دي چې دا هم د مکلفینو فعل دی.

۳- اختيار ورکول: ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَن تَنكِحُوهُنَّ إِذَا آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ﴾ [الممتحنة: ۱۰]، په دې خطاب کې د مسلمانو ښځو د نکاح کولو په اړه مکلفينو ته اختيار ورکول دي.

۴- **وضعي حکم:** رسول الله ﷺ فرمايلي: «لايَرِثُ الْقَاتِلْ»[1] د پېغمبر عليه السلام دا حديث چې په حقيقت کې د الله ﷻ له خوا وحې ده، د قتل په هکله دی. په دې حديث کې د مورث قتلول له ميراث څخه د قاتل مانع ګاکل شوی دی، او مانع ګاکل وضعي حکم دی.

د فقهاوو په وړاندې حکم د الله تعالی د هغه خطاب اثر دی چې د مکلفو وګړو په کړو وړو پورې اړه لري، د څه کول يا نه کول ورڅخه غواړي، يا يې مباح کوي، يا کوم څيز د بل کار لپاره شرط، سبب، مانع او... ګرځوي.

په لومړي مثال ﴿أَوْفُواْ بِالْعُقُودِ﴾ کې د اصوليانو په وړاندې حکم د ژمنو د پوره کولو غوښتنه ده او د فقهاوو په وړاندې د ژمنو د پوره کولو وجوب دی، ځکه غوښتنه واجبول دي چې اثر يې وجوب دی. همدا راز په دويم مثال کې حکم د ملنډو وهلو منع کول دي چې اثر يې حرمت دی. په درېيم مثال کې حکم د نکاح اباحت دی چې اثر يې د نکاح مباح کېدل دي. په څلورم مثال کې قتل له ميراث څخه د محروميت سبب ګرځول دي چې اثر يې له ميراث څخه عملاً محرومېدل دي.

**يادونه**

هغه څه چې په قرآن ثابت دي هغه په مستقيمه توګه د الله تعالی د خطاب اثر دی، او هغه څه چې په سنتو، اجماع او قياس ثابت دي هغه هم د الله تعالی د خطاب اثر ګڼل کېږي، ځکه د سنتو، اجماع او قياس ثبوت هم په قرآن راغلی، نو په حقيقت کې حاکم يوازې الله تعالی دی. او موږ سنت، اجماع او قياس ځکه منو چې الله ﷻ يې د منلو امر کړی او هغه څه چې ددوی په وسيله ثابتېږي له قرآن څخه سرچينه اخلي.

### د شرعي حکم ډولونه

شرعي حکمونه په دوه ډوله دي:

تکليفي حکمونه او وضعي حکمونه.

---

( ۱) أخرجه الترمذي في سننه، باب إبطال ميراث القاتل، وصححه الألباني، (دار إحياء التراث العربي ـ بيروت) ج٤ ص ٤٢٥

**تکلیفي حکم**

د تکلیفي حکم تعریف: تکلیفي حکم د الله تعالی هغه خطاب دی چې د مکلفو وګړو په کړو وړو پورې اړه لري، د څه کول، نه کول ورڅخه غواړي، یا یې مباح کوي.

د تکلیفي حکم ډولونه

د تکلیفي حکم د ډولونو په اړه د فقهاوو تر منځ اختلاف دی.

جمهور علماء وایي چې تکلیفي حکم دا پنځه ډولونه لري: فرض، واجب، مندوب، مباح، مکروه او حرام.

زموږ د حنفي مذهب عالمان رحمهم الله په دې نظر دي چې تکلیفي حکم اووه ډولونه لري: فرض، واجب، مندوب، مباح، تنزیهي مکروه، تحریمي مکروه او حرام.

اوس به ددې ډولونو په تفصیلاتو خبرې وکړو.

**واجب**

د واجبو تعریف: د لغت له مخې واجب د لازم په معنا دی. د پرېوتونکي په معنا هم راځي، لکه چې د دېوال د راپرېوتو پر مهال وایي: وجب الحایط.

واجب په اصطلاح کې هغه عمل ته وایي چې کوونکی یې د ثواب او پرېښودونکی یې د سزا وړ ګرځي. د جمهورو په وړاندې واجب او فرض دواړه یوه معنا او یو حکم لري.

زموږ د حنفي مذهب عالمان رحمهم الله دلیل ته په کتو سره د فرض او واجبو تر منځ توپیر کوي. که چېرې دلیل ظني وي، لکه: د قربانۍ ثبوت چې په آحاد حدیث شوی، نو فعل واجب ګڼل کېږي او که چېرې دلیل قطعي وي، لکه د لمانځه فرضیت چې په قرآني آیتونو ثابت شوی، نو عمل فرض ګڼل کېږي. ددې توپیر په اساس د حنفیانو په وړاندې واجب له فرضو څخه ټیټه درجه لري. له همدې امله د واجبو د پرېښودونکي سزا د فرضو له پرېښودونکي څخه کمه ده. همدا راز له فرضو څخه منکر کافر ګڼل کېږي، خو له واجبو څخه منکر کافر نه ګڼل کېږي.




۱- د فقهاوو او اصولیانو له نظره د شرعي حکم لغوي او اصطلاحي تعریف وکړئ.

۲- د جمهورو او حنفیانو له نظره د تکلیفي حکم تعریف او ډولونه بیان کړئ.

۳- د واجب لغوي او اصطلاحي تعریف بیان او د حنفیانو په وړاندې د واجبو او فرضو توپیر روښانه کړئ.

# شرعي حکم [۲]

## مندوب

**د مندوب تعریف:** ندب په لغت کې د یوو مهم کار لپاره بللو ته وايي.

مندوب په اصطلاح کې هغه عمل ته ویل کېږي چې کوونکي ته یې ثواب شته، خو پرېښودونکي ته یې عقاب نشته. د مندوب ځینې ډولونه داسې دي چې په پرېښودلو یې بنده ملامت ګڼل کیږي.

مندوب ته سنت، مستحب، نفل، تطوع، احسان او فضیلت هم ویل کېږي. دا ټول لفظونه د معنا په لحاظ سره نژدې دي او هغه عمل ته ویل کېږي چې کول یې غوره خو اجباري نه وي.

**مندوب ګڼې درجې لري**

د مندوب لوړه درجه سنت مؤکد دی. سنت مؤکد هغه عمل ته ویل کېږي چې رسول اللهﷺ وربانديې همیشه والی کړی وي او ډېر لږ یې پرېښې وي، لکه د سهار د لمانځه دوه رکعته سنت چې پرېښودونکی یې ملامت ګڼل کیږي.

په دې پسې د غیر مؤکدو سنتو درجه ده. دا هغه سنت دي چې رسول اللهﷺ ترسره کړي، خو دوام یې ورباندې نه وي کړی، لکه د مازدیګر له لمانځه مخکې څلور رکعته نفل لمونځ ادا کول.

په دې پسې د هغو سنتو درجه ده چې د فضیلت، ادب او زوایدو سنتو په نامه یادېږي، لکه د ژوند په عامو چارو کې د پیغمبر علیه السلام د عاداتو او هغو کارونو پیروي کول چې له هغه مبارک شخه د یو انسان په توګه صادر شوي وي. مثالونه یې په خوراک، څښاک او ویده کېدو کې د رسول اللهﷺ پیروي کول دي.

**مکروه**

د مکروه تعریف

مکروه په لغت کې بد ګڼل شوي ته وايي.

مکروه په اصطلاح کې هغه عمل ته ویل کیږي چې پرېښودونکي ته یې ثواب شته، خو کوونکي یې د سزا وړ نه ګرځي.

د حنفیانو پر وړاندې مکروه په دوه ډوله دی:

تنزيهي مکروه: هغه مکروه ته ویل کیږي چې پرېښودونکي ته يې ثـواب وي او کـوونکي ته يې سزا نه وي، لکه د جمهورو د تعريف په څېر.

د بېلګې په ډول په ولاړه اوبه څښل تنزيهي مکروه دي ځکه چې د ابوسعيد خـدريﷺ پـه روايت کې رسول اللهﷺ په ولاړه د اوبو څښل منع کړي[1].

تحريمي مکروه: تحريمي مکروه هغې عمل تـه ويـل کېږي چـې پـه ظنـي دليـل ورڅخـه خلك منع شوي وي.

د حنفيانو په وړاندې دا مکروه د واجب په مقابل کې قـرار لـري. لـه حـرام څخـه پـه ټيټـه درجه کې راځي او منکر يې نه کافر کيږي.

مثال يې د چا په بيعې باندې بيع کول او د چا پـه خطبـې (مرکـې) بانـدې مرکـه کـول دي ځکه چې رسول اللهﷺ فرمـايي: «وَلَا يَبِيعُ الرَّجُلُ عَلَى بَيْعِ أَخِيهِ وَلَا يَخْطُبُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ»[2] دا حديث خبر واحد دی نو ظني دليل دی.

## حرام

### د حرامو تعريف

حرام په لغت کې ممنوع ته وايي او د جمهورو په اصطلاح کې هغه عمل تـه ويـل کېږي چې پرېښودونکي ته يې ثواب او کـوونکی يـې د سـزا وړ ګرځـي. حنفيـانو هـم د حرامـو تعريف همداسې کړی، خو يو شرط يې ور زيات کړی او هغه دا چې حرام بـه پـه قطعـي دليل ثابت وي.

د حرامو مثالونه خورا زيات دي، لکه د شرك حراموالی، د زنا، سود او نورو حراموالی.

## وضعي حکم

### د وضعي حکم تعريف

د الله پاك خطاب چې يو شی د بل شي لپاره سبب، شرط او يا مانع وګرځوي.

ددې مقصد دا دی چې الله پاك موږ تـه حکمونـه راليږلـي او د حکـم د ثبـوت لپـاره يـې دلايل ټاکلي. د بېلګې په ډول يو حکم د خپل سـبب پـه پيـدا کېـدو، د شـرطونو پـه پـوره

( ۱)أخرجه مسلم في كتاب الأشربة ، باب في الشرب قائما برقم (۲۰۲۵).

( ۲) أخرجه البخاري في باب لا يبيع على بيع أخيه برقم : (۲۰۳۳).

کېدو او د مانع په له منځه تلو، منځته راځي. همدا راز د سبب او شرط په له منځه تلو او د مانع په پیدا کېدو له منځه ځي.
دې ته وضعي حکم ځکه وايي چې د شارع له خوا کېښودل شوی. دا شارع دی چې د لاس پرې کولو لپاره يې غلا کول سبب ګڼلی، د لمانځه د صحت لپاره يې اودس شرط ګڼلی او د مورث وژل يې د ميراث د اخيستلو مانع ګرځولي.
وضعي حکم درېو ډولو ته وېشل شوی: سبب، شرط او مانع.

**سبب**

په هر هغه شي باندې، چې بل شي ته رسېدل کېږي، سبب نومېږي.
سبب په اصطلاح کې هغه شي ته ويل کېږي چې په موجود کېدو يې حکم موجودېږي او په له منځه تلو يې حکم له منځه ځي.
د مثال په توګه د روژې د مياشتې په ليدل کېدو د روژې نيول واجبېږي، الله ﷻ فرمايي: ﴿فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ [البقرة: ١٨٥].

**شرط**

د شرط تعريف
شرط هغه شي ته ويل کېږي چې له وجود پرته يې شی نه بشپړېږي او د شي په حقيقت کې داخل هم نه وي.
شرط په اصطلاح کې هغه شي ته ويل کېږي چې په له منځه تلو يې حکم له منځه ځي، خو په موجود کېدو يې حکم هرو مرو منځته نه راځي.
د شرط مثال: اودس کول د لمانځه لپاره شرط دی. الله ﷻ فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ﴾ [المائدة: ٦]. که چېرې اودس نه وي لمونځ نه کېږي خو د اودس د شتون سره هرو مرو لمونځ نه موجودېږي.

**مانع**

د مانع تعريف:
د دوو شيانو تر منځ پردې ته مانع ويل کېږي.
مانع په اصطلاح کې هغه شي ته ويل کېږي چې په شتون يې حکم منځ ته نه شي راتلای.
يعنې کله کله د حکم سببونه پوره وي او بايد حکم موجود شي خو د يو مانع له امله حکم منځته نه راځي.

د ښېلګي په ډول که پلار خپل ځوی ووژني، نو قصاص کېږي پرې نه، ځکه دلته یو مانع منځته راغلی او هغه د پلارولۍ اړیکه ده، چې د قصاص مانع ګرځي.

**فعالیت**

د لیکل شوي مثال په څېر راتلونکي هر یو حکم ته دوه مثالونه ولیکئ:

مثال: فرض: ۱ـ په یوه ورځ کې پنځه وخته لمونځ فرض دی.

۲ ـ هغه څوک چې د حج کولو توان لري، ادا کول یې وربانديې فرض دي.

فرض: ۱ ـ

۲ ـ

واجب: ۱ ـ

۲ ـ

تنزیهي مکروه: ۱ ـ

۲ ـ

تحریمي مکروه: ۱ ـ

۲ ـ

حرام: ۱ ـ

۲ ـ




۱- د ندب لغوي او اصطلاحي معنا روښانه کړئ.

۲- د مندوب درجې بیان کړئ.

۳- د حنفیانو په وړاندې د تحریمي او تنزیهي مکروه تر منځ څه توپیر دی؟

۴- د جمهورو او حنفیانو له نظره د حرام تعریف روښانه کړئ.

۵- وضعي حکم څه ته وایي؟ ولې ورته وضعي وایي او ډولونه یې کوم دي؟

۶- د سبب، شرط او مانع لغوي او اصطلاحي تعریفونه د مثال سره بیان کړئ.

# فتوا

## د فتوا تعريف

د فتوا ټکی د (أفتاه في الأمر) څخه اخيستل شوی. معنا يې ده: چاره يې ورته بيان او روښانه کړه، فتوا هغه نظر ته وايي چې فقيه يې وړاندې کوي.

د فتوا اصطلاحي تعريف: يو چا ته د پېښې شوې مسألې په اړه د دليل پر بنسټ د الله ﷻ حکم څرګندولو ته فتوا وايي.

مفتي: هغه عالم ته وايي چې خلکو ته د پېښو شويو مسألو په اړه شرعي حکم بيانوي.

مستفتي: د يوې پېښې په اړه د شرعي حکم پوښتونکي ته وايي.

## د فتوا اهميت او ارزښت

افتا خورا ارزښت لرونکی او د درناوي وړ منصب دی. له همدې کبله الله پاک په قرآن کريم کې د فتوا ورکولو دنده خپل ځان ته منسوبه کړې او فرمايي: ﴿يَسْتَفْتُونَكَ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ﴾ [النساء: ١٧٦]

په لومړيو کې ددې دندې ترسره کول د خواږه پيغمبر ﷺ دنده وه. هغه عليه السلام به د الله پاک له وحې سره سم خلکو ته فتوا ورکوله او په خورا روښانه او لنډ ډول به يې خلکو ته د هغوی پوښتنې ځوابولې.

مفتي د رسول الله ﷺ په مقام کې قرار لري. رسول الله ﷺ په دې اړه فرمايي: «إِنَّ الْعُلَمَاءَ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ وَ إِنَّ الْأَنْبِيَاءَ لَمْ يُورِّثُوْا دِيْنَاراً وَ لَا دِرْهَماً إِنَّمَا وَرَّثُوْا الْعِلْمِ»[1]، بې شکه علماء د انبياوو وارثان دي او انبياوو دينار او درهم په ميراث نه دي پرېښي، بلکې يوازې علم يې په ميراث پرېښی.

مفتي د احکامو په بيانولو کې د رسول الله ﷺ استازی دی. رسول الله ﷺ فرمايي: «أَلاَ لِيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ مِنْكُمُ الْغَائِبَ»[2]، خبر اوسئ! حاضر دې غايب ته (خبره) ورسوي.

څرنګه چې مفتي د الله پاک احکام خلکو ته بيانوي، نو دا دنده ستر مسؤليت هم دی. الله ﷻ د هغه چا لپاره چې له خپله ځانه په الله ﷻ پسې خبرې تړي د سخت عذاب وعده کړې او دا کار يې يو ډول شرک بللی. الله ﷻ فرمايي: ﴿ قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْإِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَأَنْ تُشْرِكُوا بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ [الأعراف: ٣٣]. **ژباړه:** اى محمده! دوى ته ووايه زما رب چې کوم شيان حرام

---

( ١) أخرجه أبو داود في كتاب العلم، باب في فضل العلم

( ٢) أخرجه البخاري في كتاب العلم، باب قول النبي ﷺ: رب مبلغ أوعني من سامع، ومسلم في كتاب القسامة والمحاربين ، باب تغليظ تحريم الدماء والأعراض والأموال.

کړي، هغه دادي: د بې حیایۍ چارې که ښکاره وي او که پټې ګناه او د حق پر خلاف تېرى او دا چې له الله ﷻ سره تاسې کوم څوک شریک کړئ چې د هغه لپاره یې کوم سند نه دى نازل کړى او دا چې د الله ﷻ په نوم داسې کومه خبره وکړئ چې د هغې په باب تاسې معلومات ونه لرئ چې هغه په حقیقت کې کړې ده.

رسول الله ﷺ په دې اړه فرمايلي: «مَنْ أُفْتِيَ بِغَيْرِ عِلْمٍ كَانَ إِثْمُهُ عَلَى مَنْ أَفْتَاهُ»[1]

چاته چې په ناپوهۍ فتوا ورکړل شوه ګناه یې په هغه چا ده چې فتوا یې ورکړې.

سلفو صالحینو به تل کوښښ کاوه چې د شرعي مسایلو پوښتونکي نورو ته ولیږي او د سختې اړتیا پرته به یې فتوا ورکولو ته زړه نه ښه کاوه. هغوى به له علم پرته له فتوا ورکولو څخه خلک زیات وېرول.

### د فتوا ورکولو حکم

فتوا ورکول پنځه حالتونه لرى:

۱- هغه مهال د فتوا ورکول واجب دي چې مفتي د فتوا په مسأله پوه وي، ځواب ویلو ته اړتیا هم وي، پر حکم د عمل کولو وخت هم رسېدلى وي او په سیمه کې بل مفتي هم نه وي. په داسې حالاتو کې فتوا ورکول ددې آیت پر بنسټ واجب دي: ﴿وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُ فَنَبَذُوهُ وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ وَاشْتَرَوْا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُونَ﴾ [آل عمران: ۱۸۷]. **ژباړه:** دغو اهل کتابو ته هغه کلکه وعده وریاده کړه چې الله ﷻ ورځخه اخیستې وه چې تاسې به د کتاب لارښوونې په خلکو کې هرو مرو خوروئ او هغه به نه پټوئ ، خو هغو کتاب شاته وغورځاو او هغه یې په لږه بیه وپلوره، څومره ناکاره راکړه ورکړه ده چې دوى یې کوي.

د رسول الله ﷺ دا وینا هم ددې غوښتنه کوي: «مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ فَكَتَمَهُ أَلْجَمَهُ اللهُ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ»[2]، له چا څخه چې د یو علم په هکله پوښتنه وشوه، او ده هغه پټ کړ، نو د قیامت په ورځ به د اور په قیضه قیضه کړاى شي.

۲- کله چې مفتي د فتوا ورکولو وړ وي، خو په سیمه کې بل مفتي شتون ولري او هم د فتوا ورکولو اړتیا شدیده نه وي، نو فتوا ورکول مستحب دي.

۳- فتوا ورکول هغه مهال حرام دي چې ځواب ورکوونکى په شرعي حکم پوه نه وي، که څه هم فتوا یې له شریعت سره برابره وي. یا د فتوا ورکولو مقصد دنیوي ګټې او یا هم د نفس غوښتنه وي.

---

( ۱) أخرجه أبوداود، باب التوقي من الفتيا (دار الكتاب العربي ، بيروت)، ج ۳ ص ۳۵۹.

( ۲) أخرجه أبوداود في كتاب العلم، باب كراهية منع العلم والترمذي في أبواب العلم،باب ما جاء في كتمان العلم، وقال حديث حسن.

۴- که پوښتنه دداسې مسألې په اړه وي چې پېښه شوې نه وي او فرضي بڼه ولري نو پداسې موضوعاتو کې فتوا ورکول مکروه دي. سلفو صالحینو په داسې موضوعاتو کې بحث کول بد ګڼل او ویل به يې: پرې يې ږدی تر څو پېښې شي.

۵- فتوا ورکول هغه وخت مباح ګڼل کيږي چې مفتي د فتوا وړ وي، موضوع هم داسې وي چې پېښېدل يې شوني وي خو د فتوا د ځواب لپاره وخت زيات وي. په داسې حالاتو کې فتوا ورکول روا دي.

**د مفتي شرطونه**

څرنګه چې مفتي د الله جل جلاله او رسول صلی الله علیه وسلم حکم خلکو ته بيانوي نو بايد لاندې شرطونه پکې پوره وي:

۱- مفتي بايد مسلمان، بالغ، عاقل او عادل وي. پر دې شرطونو باندې د علماوو اجماع ده. کافر، مرتد او هغه څوک، چې د ايمان ماتوونکی عمل يې ترسره کړی وي، د فتوا ورکولو وړ نه دی. همدا راز کوچنی، ليونی، اعتقادي فاسق، عملي او قولي فاسق د فتوا ورکولو وړ نه بلل کيږي.

۲- مفتي بايد په ور وړاندې شوې مسأله علم ولري، د هغې په هکله له شرعي دلايلو څخه خبر وي، د پخوانيو علماوو نظريات، په دې هکله بايد ورته معلوم وي، څو د اجماع په خلاف فتوا ورنکړي.

۳- مفتي بايد د فقهې په اصولو عالم او د متفق عليها او اختلافي دلايلو او په ځانګړي ډول د قياس په اړه هم علم ولري.

۴- مفتي بايد په عربي ژبه، نحوې او صرف عالم وي، ځکه د فتوا مأخذونه په عربي ژبه دي، نو د عربي له پوهې پرته په سمه توګه شرعي حکم ته رسېدل ناشوني دي.

۵- مفتي بايد د اسلامي شريعت په مقاصدو پوه وي او د خلکو د مصلحتونو، حالاتو او دودونو په اړه معلومات ولري، ځکه ځينې احکام د مصلحتونو، حالاتو او دودونو په بدلون، بدلون مومي.

۶- مفتي بايد د ور وړاندې شوې مسألې په ټولو اړخونو ځان پوه کړي، د پوښتل شوې صورت څخه هر اړخيز تصور ولري، څو د هغه سره مناسب حکم اظهار کړی شي.




فتوا، مفتي او مستفتي چا ته ويل کيږي؟

د فتوا د ارزښت او اهميت په اړه معلومات ورکړئ.

په بېلابېلو وختونو کې د فتوا ورکولو په اړه رڼا واچوئ.

د مفتي شرطونه کوم کوم دي؟



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

## دولسم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ .ش.

## د کتاب ځانگړتياوې

**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه
**مؤلفين:** د تعليمي نصاب د اسلامي زده کړو برخې د درسي کتابونو مؤلفين
**اډيټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډيټ ديپارتمنت غړي
**ټولگی:** دولسم
**د متن ژبه:** پښتو
**انکشاف ورکوونکی:** د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تأليف لوی رياست
**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړيکو او عامه پوهاوي رياست
**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي
**د چاپ ځای:** کابل
**چاپخونه:**
**برېښناليک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي